کندهار

مجله

اطلاعات او کلتور

یاشتنی خپرونه

د ۱۳۵۱ لمریز کال
د زمری میاشت
پنځمه ګڼه

پرله پسې ګڼه ۱۴۳

د تاسیس کال ۱۳۲۹






غازی سردار محمد ایوب خان د میوند د تاریخي جګړې
د میدان ستر قهرمان او فاتح

د یوې ګڼې بیه ۳ افغانۍ

# په کندهار کښې د افغاني سرې میاشتې
# د صحي مرکز د ودانۍ د بنسټ ډبره کښېښودل شوه

### کندهار د زمري ۱۱:
### د هند د نوي قنسل د پېژندنې د پاره مېلمستیا

پرون ماښګر په کندهار کې د هند د پخواني قنسل ښاغلي سنګهه د مخه چې او د نوي

قنسل ښاغلي پدېهان د پېژندګلوۍ له کبله د دغه قنسل ګرۍ لخوا یوه ماښګرنۍ مېلمستیا شوې وه چې په هغې کښې د کندهار والي ښاغلي سلطان عزیز ذکریا د مرکز دایرو مشرانو، د مطبوعاتو نمایندګانو او په کندهار کې اوسېدونکو خارجیانو دېپلوماتو ګډون کړی وو.
په دغه مېلمستیا کښې ښاغلي پدېهان په کندهار کې د هند د نوي قنسل په حیث بلل شوو کسانو ته ور وپېژندل شو.



د کندهار د والي ښاغلي سلطان عزیز ذکریا د تیلو د مرکزي ټانک تر څنګ د افغاني سرې میاشتې د صحي مرکز د ودانۍ د بنسټ ډبره ږدي

### کندهار د زمري ۱۵:

په کندهار کې د افغاني سرې میاشتې د صحي لمړنیو مرستو د مرکز د بنسټ ډبره نن د کندهار د والي ښاغلي سلطان عزیز ذکریا د لخوا د کندهار د ښار د تیلو د مرکزي ټانک پر څنګ کښېښودل شوه.

د کندهار والي د وینا په ترځ کې وویل: د معظم همایوني اعلیحضرت او د افغاني سرې میاشتې د عالي رئیس والا حضرت شهزاده

احمد شاه د عمر د اوږدوالي په دعا سره د کندهار په ښار کې د یو لړ صحي خدمتونو لپاره د لمړنیو مرستو د مرکز د ودانۍ د جوړېدو کار شروع کوو.

د کندهار والي څرګنده کړه چې د دغه عام المنفعه ودانۍ به ژر تر ژره ودانه او د صحي خدمتونو د پاره چمتو شي.



د کندهار والي ښاغلي سلطان عزیز ذکریا د هند د قنسل ګرۍ په مېلمستیا کې د پخواني او نوي قنسل سره لیدل کېږي




د ۱۳۵۱ کال دزمری میاشت

# زموږ لاسي چاروته پاملرنه په کار ده

دلاسي چارو محصولات زموږ ملي بانگه تشکیلوي ودغې لارې څخه زموږ دخلکو بوشمیر اه تیاوې لیرې کیږي او هم دهغه دخرڅلاو له درکه دغه مؤلده په خپل اقتصاد یات تقویه کوي.

هغه وخت چې ماشین لامنځ ته نه و راغلی او ماشیني صنعت رواج نه درلود، انسانانو خپل ټول شیان په لاس جوړول خو داچه چې لاسي تولیدات ورته ګران تمامیدل نو هرڅه دهغه د اخستلو او استعمال وس نه درلود.

انسانانو دخپل دغه ضرورت د لیرې کولو او هوساینې په غرض ماشیني صنعت میدان ته را وبوست او هغه ته ئې وده او پراختیا ورکړه او اوس صنعتي هیوادونه خپل زیاتره شیان د ماشین په واسطه جوړوي خو سره په انکشاف هیوادونه لا لاسي چاروته اړتیا لري او کوشش ئې دادی چې سربیره پر ماشیني صنعت لاسي چاروته هم وده او پراختیا ورکړي.

زموږ په ولایت کې دیرزي پخوازمانې څخه څیني لاسي چاري رواج لري او زموږ شمیر کسان په دغو کارونو اخته او خپل ژوند د دغې لارې څخه تأمینوي او هیوادوالو ته دلاسي محصولاتو تهیه کولو له درکه خدمت کوي.

زموږ لاسي چارو ته زیاته پاملرنه په کار ده او بایده په هغه کې د هره حیثه اصلاحات راشي او هم که موږ وکولای شو دوړو ماشیني دستګاوو په واسطه خپلې اوسنۍ لاسي چارې تقویه او پرمخ بوزو دغه کار به زموږ د دغو تولیداتو اندازه زیاته کړي او هم به موږ وکولای شو له دغې لارې څخه خپلو لاسي صنایعو ته په خارجي هیوادونو کې د خرڅلاو بازار وموموو.

د کندهار په لاسي چارو کې زرګري، مسګري، خیاطي، نجاري، معماري، کلالي، حکاکي، خرادي، د بوټونو جوړول، دخولیو، رخچینو، واسکټونو او خامکي ګنډونو دغول، دکړاړو او دل اوداسې نورې چارې شاملې دي.

مونږ د خپلو دغو صنایعو څیني اومه مواد دخارجي هیوادونو څخه راوړو او څیني مواد په خپل هیواد او ولایت کې لاس ته راوړو.

اوس چې زموږ په ولایت کې د بریښنا طاقت قوي کیږي او په تیره بیاد کجکي داو بوبریښنا زیاته انرژي زموږ په اختیار کې ږدي موږ باید د دغه طاقت څخه دوړو ماشینونو په چلولو او تخنیکي دستګاوو په کار اچولو کې کار واخلو او خپلو بیکارانو ته د دغې لارې څخه د کار زمینه برابره کړو.

د کانو او صنایعو وزارت او صنعتي بانک څخه زموږ هیله داده چې دلاسي صنایعو د تقویې او هیواد ته دوړو صنایعي دستګاوو د راوړلو او د دغې مؤلدې چارې سره د مادي مرستې د خرڅلاو د بهر بازارونو تهیه کولو او داسې نورو چارو په هکله خپل کوشش په کار واچوي ځکه چې هم زموږ د لاسي چارو د کار کوونکو قوه تقویه شي او هم نورو کسانو ته د کار زمینه مساعده او د هیواد اقتصادیات له دغې لارې څخه پیاوړي شي.

( ایوبي )


د کندهار مجله

دامتیاز خاوند: د طلوع افغان نشراتي مؤسسه
د مسؤل مدیر وکیل: غلام محی الدین (ایوبي)
مهتمم: عبدالکریم (طالب)

لیکوونکي پلاوه

عبدالقدوس (نجیب)
احمد (راشد)
عبدالمنان (امین)

میرمن ملاله (اڅکز ی)
طباعتي همکار محمد علمي (بارک)
اداره: د شهیدانو واټ
د تیلفون نمبر ۳۱۸۴

# جاپان ته د غازي سردار محمد ایوب خان سفر

## د تاریخ یوه گوښه

پښتو کوونکی فیض محمد وزیری

د افغانستان د اوسني تاریخ په لړ کې د ملي او نامتو قهرمانانو څخه یو هم سردار محمد ایوب خان دی چې د امیر شیر علي خان زوی او د میوند د جنگ په فاتح

سره مشهور دی. سردار محمد ایوب خان په مېړانه دلاوري او وطن دوستۍ کې لکه د امیر دوست محمد خان زوی وزیر محمد اکبر خان غوندې و حتی په خصوصیاتو

کې سردار محمد ایوب خان پر وزیر محمد اکبر خان باندې څه والی درلود.

د سردار محمد ایوب خان څه والی پر وزیر محمد اکبر خان دا و چې د پښتنو او انگریزانو په لومړي جنگ کې ځینو ملي مجاهدینو د وزیر محمد اکبر خان د مخه پر خپلو ملي مبارزو پیل کړی و لکه عبدالله خان اڅکزی،

امین الله خان لوگری او سلطان جان د وزیر محمد اکبر خان د اکازوی څو لو ملي مجاهدینو یو د بله لاسونه سره ورکړي وو چې انگرېزان د خپلې خاورې

څخه وباسي. مگر د پښتنو او انگریزانو په دوهم جنگ کې سردار محمد ایوب خان د میوند په جنگ کې یوازې و او د دغه جنگ چارې ده په لاس کې وې څو په دغه جنگ کې چې د ۱۸۸۰ کال په

د جولای ۲۷ د انگریزانو جنرال «بر روز» ته په میوند کې سخته تاریخي ماته ورکړه دې ماتې د انگریزانو پر روحیاتو ژېر تاثیر وکړ او کندهار

بیرته د افغانستان په قلمرو کې داخل سو په دغه جنگ کې د انگریزانو په زرو عسکر مړه او ټوپیان سول

سردار محمد ایوب خان نه یوازې دا چې د میوند په ډگر کې انگریزانو ته سخته ماته ورکړه بلکه انگریزان یې دې ته مجبور هم کړل چې د افغانستان د خاورې څخه ووزي

او موږ یې قهرمان د میوند په جنگ کښې یو عمل بیا انگریزانو ته د پښتنو او انگریزانو ته د لومړي جنگ خاطرې ور په یاد کړې.

انگریزانو د اسې تصمیم نیولی و چې افغانستان تجزیه کې کندهار په هندبوري وتړي او د افغانستان نوره خاوره امیر عبدالرحمن خان ته پرېږدي په دې اساس د افغانستان د مځکې د تمامیت او یووالي په لار کې د سردار محمد ایوب خان دغه خدمت چې

یو ملي قهرمان په حیث یې کړی یو دی، د قدر او احترام وړ دی.

څرنگه چې سردار محمد ایوب خان ځیرهو ښیار او پوه سړی و نو پدې کښې شک نه و چې د امیر شیر علي خان تر مړینې وروسته به دی د افغانستان پاچا سي. مگر

کوم وخت چې امیر شیر علي خان مړ شو د یوې خوا څخه ده د خپل مشر ورور محمد یعقوب خان ډېر احترام درلود او

او د بلې خوا څخه ده کشر ورور شهزاده عبدالله چې

پر امیر شیر علي خان ډېر گران و په خپل ژوند کې ولیعهد ټاکلی و نو سردار محمد ایوب خان ته د پاچهۍ زمینه برابره نه سوه او ده د یوه وطن دوست شهزاده

په صفت یې خپله وجداني وظیفه پای ته ورسول یعني گوښه والی یې غوره کې.

کوم وخت چې انگریزانو دده ورور امیر محمد یعقوب خان سره د گندمک معاهده او هم دغه رنگه د امیر عبدالرحمن خان سره د ډیورنډ منحوسې معاهدې

لاس لیک کړلې او د افغانستان ډېره خاوره د انگریزانو تر استعمار لاندې راغلل چې د دغه

(۴۳مخ)

خاوره د اوسني پښتونستان څخه عبارت ده، نو سردار محمد ایوب خان د دغه معاهدو د لاس لیک کېدو څخه ډېر غمجن سو.

انګرېزان په دې پوهېدل چې سردار محمد ایوب خان یو وطن غوښتونکی او د انګرېزانو سخت دښمن دی نو په همدې سبب سره انګرېزانو نه غوښتل چې دی

بېرته افغانستان ته ولاړ سي او د امیر عبدالرحمن خان پاچهۍ ته زیان ورسوي او هم دغه رنګه د امیر عبدالرحمن خان سفیرانو په هندوستان کښې د

سردار محمد ایوب خان حرکتو ته تعقیبوله او د هر عمل به ئې تر کتنې لاندې نیوی.

کوم وخت چې امیر عبدالرحمن خان مړ شو نو د ده زوی امیر حبیب الله خان د افغانستان پاچا سو په دغه وخت کښې انګرېزان ډېر ډېر وارخطا وو.

او په دې ښه پوهېدل چې سردار محمد ایوب خان یو وطن پرسته او جنګجو سړی دی که افغانستان ته ولاړ شي امیر حبیب الله خان ته به ډېر مشکلات پېښ کي

نو په دغه سبب سره انګرېزان د سردار محمد ایوب خان ټولو حرکتو ته متوجه وو کله چې په ۱۹۰۷ کال کې انګرېزانو امیر حبیب الله خان هند ته دعوت کی نو

انګرېزان په ډېره وېره کې ولوېدل چې سردار محمد ایوب خان به د دغه وخت څخه استفاده وکي او افغانستان ته به ولاړ سي نو په دې لحاظ انګرېزانو د

سردار محمد ایوب سره خبرې وکړې او ورته وویل چې د سیاحت په ډول د څو ورځو د پاره د هند

څخه خارجي هېواد ته ولاړ سه. سردار محمد ایوب خان چې یو آزادي غوښتونکی شخص ؤ شپه او ورځ به د جاپان خبرو ته متوجه ؤ. لکه څرنګه چې د افغانستان خلکو په

دوو لویو جنګو کې د اروپا لوی قدرت یعنې انګرېزانو ته سخته ماتې ورکړې وه نو دغه رنګه په ۱۹۰۵ کال کې د جاپان خلکو تزاري روسیه ته ماتې ورکړې وه. په دغه

اساس سردار محمد ایوب خان دې موافقې ته ورسېدی چې جاپان ته سفر وکي او د جاپان د حربي مشرانو سره

وګوري. انګرېزانو دا کار د امیر حبیب الله خان په خاطر وکی.

مګر حبیب الله خان د سردار محمد ایوب خان په دې سفر خوښ نه ؤ چې جاپان ته ولاړ سي او هم دغه رنګه د جنوري په نهمه انګرېزانو «سرلو ئیس ډین» ته نوشته کړل

چې د سردار محمد ایوب خان د دوي میاشتني سفر چې جاپان ته ځي او هغه نظر په چې نوموړی ئې لري د انګرېزانو حکومت د هغه څخه په خبر دی او هم ئې په

خپل لیکڅ کې ورته نوشته کړل «که د امیر حبیب الله خان په غیاب کې سردار محمد ایوب خان افغانستان ته ولاړ سي ډېر جنجال به امیر حبیب الله خان ته پېښ کړي»

د ۱۹۰۷ کال د فروري پر ۲۱ نېټه د انګرېزانو مامورینو د جاپان څخه د انګرېزانو خارجه وزارت «سراډوارډ ګری» ته ولیکل چې که امیر حبیب الله خان

هندوستان ته راسي او په دغه وخت کې سردار محمد ایوب خان هم په هند کښې وي نو به دې موقع څخه استفاده وکي افغانستان ته به ولاړ شي او انګرېزانو ته به ډېر مشکلات

پېښ کي نو په همدې سبب سره انګرېزانو سردار محمد ایوب خان دې ته مجبور کی چې جاپان ته سفر وکي. د انګرېزانو مرام دا ؤ چې

سردار محمد ایوب خان د افغانستان او د هند د خاورې څخه لیرې وي او د انګرېزانو حکومت په هندوستان کې په ډېره آرامۍ سره د افغانستان د پاچا امیر حبیب الله خان مېلمه پالنه وکي.

د دغه تاریخي لیکڅ د متن څخه داسې معلومېږي چې انګرېزان او امیر حبیب الله خان د سردار محمد ایوب خان څخه ډېر په وېره کې وو.

په هر ترتیب سردار محمد ایوب خان د مېجر وایټ په ملګرتیا جاپان ته ولاړ ی او په دغه تاریخي سفر کې افغاني قهرمان د جاپان او روس د ۱۹۰۵ کال

د جنګ د دوو جاپاني قهرمانانو سره چې ادمیرال توجو او مارشال «ئیرا اوچي» نومېدل، وکتل (مارشال ئیرا اوچي په هغه وخت کې د جاپان د جنګ وزیر ؤ)

او د ۱۹۰۵ کال د جنګ زخمیانو ته ئې اعانه ورکړه. او د ۱۹۰۷ کال د مارچ په ۱۴ بېرته د کوبې بندر د لارې څخه د «اس،اس مانیلا» د الوتکې په ذریعه هند ته راغی.

(پاته په ۳۱ مخ کې)



تهیه کوونکی: احمد «راشد»

# دیوګنډا او روسټیو جریاناتو ته یوه کتنه

هغه وخت چې د یوګنډا پخوانی جمهور رئیس ډاکټر ملتن اوبوټی د ۱۹۷۱ کال د جنورۍ د میاشتې په وروستیو ورځو کې د مشترک المنافعو هیوادو

په کنفرانس کې چې په سنګاپور کې جوړ شوی و، د جنوبي افریقا په تېره بیا غوڅوونکې حکومت باندې د برتانوي وسلو د خرڅلاو د مخنیوي په غبرونو بوخت و،

نا بېره د خبر رسولو آژانسو خبر ورکړ چې د یوګنډا نظامي کسانو د جنرال ایدی امین په مشرۍ د دغه هیواد د چارو واګې په لاس کې واخیستې. د دغه خبر

اورېدل د زیاتو خلکو د پاره غیر متوقع و، ځکه ډاکټر ملتن او بوټي تر هغه وخت پورې د افریقا د دوستو زعیمانو د ډلې څخه و او هم د ده خارجي سیاست

په مخصوص ملي او افریقایي سیاست باندې ولاړ و. یعنې هغه سیاست چې د استعمار سخت مخالف او ازادي

تېر په تېره بیا په افریقا او ټوله نړۍ کې یې پر سخت غندي.

چا بی همدغه سبب و چې په هغه کې د افریقا د یو والي د موسسې غړو هیوادو په ادیس ابابا کې

غونډه کړې او په دغه کنفرانس کې یې د ایدي امین د رژیم

د قبلېدو څخه ډډه وکړه. خو د یوګنډا نوی رژیم په ډېر لږ وخت کې خپل ځای د افریقایي هیوادو

په جمله کې ونیو.

د اخر کنده خبره چې په لومړي سر کې د نوي رژیم د اصل ماهیت تشخیص اسانه کار نه دی نو ډاکټر ملتن

او بوټي او ملګرو ئې د جنرال ایدي امین رژیم د استعمار د لاس نیال باله د اله دې امله چې د وی فکر کاوه

په یوګنډا کې د دوی د حکومت د سخت مخالفت په سبب

په جنوبي افریقا باندې د برتانوي وسلو د خرڅلاو په هکله، د ا رژیم منع ته ارغلی دی خصوصاً د ایدي امین

د رژیم تمایل د اسرائیلو سره د دوستانه روابطو

د درلودلو په هکله او په یوګنډا کې د اسرائیلي نظامي متخصصینو او تکنیشنانو موجودیت او د

اسرائیلي انجنیرانو د خوا د ځینو انکشافي پروژو

جوړول چې ویل کېده امکان لري د اسرائیلو د خوا په یوګنډا کې یوه نظامي اډه جوړه سي، نو موږ دې

افواهاتو ئې لا زیات تقویه کول او طبیعي خبره ده

چې د جنرال امین د حکومت د غه روش د عربي هیوادو په کې بوا او د هغو افریقایي هیوادو په منځ کې چې د

اسرائیلو په مقابل کې ئې د عربو د حقوقو ملاتړ کاوه یو لې تاثیرات منع ته راوړی ی وه.

## لومړی اقدام:

د سې کال په لومړیو ورځو کې د ایدي امین په خارجي سیاست کې لومړی جنبش ولیدل سوا و هغه دا و چې د اسرائیلو صاحب منصبان او نظامي کسان چې

په یوګنډا کې اوسېدل په یوګنډا کې د اسرائیلو د سفارت د لومړي سکرتر په ګډون په دغه هیوا د کې په تخریبي عملیاتو تورن کړه او دوی ته یې اخطار ورکې چې ژر تر ژره د یوګنډا خاوره پرېږدي.

ایدي امین د خپلو سمدستي اقداماتو په لړ کې ټول هغه پروژې چې د هغو چارې د اسرائیلو د ساختماني دستګاؤ په واسطه اداره کېدې، د اسرائیلو څخه د وسلو په رانیولو سره منع او معطل کړې.

د اسرائیلو پر ضد د جنرال ایدي امین د حکومت اقدامات په همدې ځای پای ته و نه رسېدل، بلکه خپل سیاسي روابطي هم د اسرائیلو سره وشلول او په کمپالا کې د اسرائیلو سفیر لومړی سړی و چې د یوګنډا څخه ووتی او هغه وخت چې د یوګنډا څخه د اسرائیلو نور ټول غړي وو تل د یوګنډا حکومت

(۴مخ)

علام وکړ چې اسرائيلي کسانو د يوګنډا څخه تلو په وخت کې يو زيات شمير سامان او لوازم هم کړي دي. ددغه اقدام په مقابل کې دايدي امين

حکومت دروابطو ورځ په ورځ دعربي هيوادو سره په چټکه کيدو سره ترڅو چې دمصر دعربي جمهوريت ليبيادو له خوا متخصصين يوګنډا ته ولاړل او نظامي

عمراني چارې يې په دغه هيواد کې په غاړه خيستې.

تر هغه وروسته د يوګنډا د نوي حکومت دروابط فريقايي او غير افريقايي عربي هيوادو، خصوصاً

مصر دعربي جمهوريت او ليبيا سره په منظم ډول مخشک وکړ او هغه تماسونه چې په دې وروستيو ختو کې ددغو درو هيوادو تر منځ پيدا سوي دي

اسي شکل لري چې يوګنډا يي مشر دانور السادات مر القذافي، حافظ الاسد، جعفر النميري په صف داخلي او ددوي په رديف کې يو بل نوم د

دي امين په نامه زيات سوی دی. که څه هم د يوګنډا لواك جمهوريت د مرکزي افريقا دهيوادو دجملې څه دی او تر يوې اندازې پورې دافريقا د شرقي

يوادو سره هم اړيکي لري. مګر څرنګه چې شمالي برخه کې دسوډان سره ګډ سرحد لري سوډان بيا دمصر او ليبيا سره هم سرحد دی

هم ددغه هيواد يو زيات شمير خلک مسلمانان دي څکه نو موږ ی هيوادونه کولای سي په ډيلو ډيلو خو کې يو د بل له مرسته څخه ګټه واخلي.

## دوهم اقدام:

تراوسه پورې لا داسرائيلي اوسيدونکو دوتلو غ په غوږو کې پاتې وُ چې د يوګنډا دمشر دوهم غ واورېدل سو، ده داځل اعلام وکړ چې په يوګنډا

ی غير يوګنډايي کسان چې دهغوی زياته برخه مانديان دي او په برتانوي پاسپورټ سره دبرتانيي استعمار په وخت کې دغه هيواد ته راغلي دي

ری د يوګنډا اقتصاد سپو تاڼوي نو څکه بايد دغه ل کسان د يوګنډا څخه ووځي او ددغه پروګرام تطبيق دپاره يې ددرې مياشتي مهلت کښېښوی.

دايدي امين دغه تصميم دغربي هيوادو په مقاماتو خصوصاً انګلستان کې يوه لويه هنګامه پيدا کړه او دغه کار ددې سبب سو چې دايدي امين په دغه تصميم

باندې دانتقاد خولې خلاصې کړي. خو ايدي امين دهمدې خپل تصميم څخه واوړي. کامنولث هيوادونه هم دهغو هيوادو په ډله کې وه چې ددغه اقدام دمخنيوي

دپاره يې کوښښونه وکړل، خو ايدي امين نه يوازې دخپل تصميم څخه نه واوښت بلکه تراوسه پورې ددرې مياشتني مهلت دنيټې اوږدېدو ته چې دانګلستان له خوا کافي نه بلل کېږي هم حاضر نه سو.

ديوې موثقې احصائيې له مخې د يوګنډا د ۹ مليونه او پنځه سوو زرو نفوسو دجملې څخه په سلو کې ۸۷ عشاريه ۷ برخې غير افريقائيان دي چې ددغه جملې

څخه ۶۳۱۳۰ تنه هندي نژاده، ۱۰۰۰۰ کسه اروپايي او يو لږ شمير خلک پاکستانيان، عرب، او دګوام دټاپو مهاجرين دي چې اوس په هند پورې اړه لري.

هغه هيوادونه چې کولای سي دمهاجرينو دغه لويه دسته په خپله خاوره کې قبوله کړي کاناډا، او استراليا دي، څکه چې په دغو دوو هيوادو کې دمهاجرينو

داوسيدو دپاره پراخه ساحه موجوده ده.

څرنګه چې دکاناډا حکومت حاضر سوی دی چې دغه موضوع تر مطالعې لاندې ونيسي. دغه رنګه

دهند حکومت سره ددې چې په دې وروستيو کلو کې يې دنسل دمخنيوي پروګرام په جديت سره تر مطالعې لاندې نيولی دی نو څرنګه چې په يوګنډا کې هندي

اوسيدونکي اصلاً هندي دي څکه هند مجبوره دی چې دوی ټول او يا يو شمير کسان يې خپل ته جذب کړي او دهمدې مجبوريت په سبب هند اعلام وکړ چې په يوګنډا کې

هندي اوسيدونکي په هره اندازه سره چې وي او دوی دهند خاوري ته ددا خليدو اجازه ولري په هند کې به ددوی دپاره ځای تيار سي.

خو داستراليا حکومت په همدې سبب چې نه غواړي په خپل هيواد کې دمحيطي آلودګۍ په غرض دنفوسو د يو ځای والي دپاره زمينه برابره کړي نو څکه يې

(پاته په ۳۱ مخ کې)

مرکه کوونکی: رحمت الله «مروند»:

# د هیواد نامتو فولکلوریست لیکوال محمد ګل «نوري» سره مرکه

دغه نامتو لیکوال تقریباً ۳۰ اثره لیکلي او ژباړه کړي دي چې د هغو څخه څوارلس چاپ سوي او نور همداسې پاته دي

دی وائي:

## په هیواد کې د ننه هیچا تر ما د مخه نه په پښتو او نه په دري ژبه ډرام او ډیالوګ تمثیل کړی دی

تقریباً ۳۵ کاله پخوا هغه وخت چې په پښتو ټولنه کې د پښتو ژبې د پاره کار شروع شو نو د هنري او ادبي څېړنو په لړ کې د پښتو فولکلوریک اړخ ته هم توجه وشوه او اهمیت ئې ورځ په ورځ لوړېدو لاړ. هغه محققین چې په کلتوري برخه کې د مطالعې خاوندان دي په دغه پوهېږي چې ژموږ د فولکلور په خزانه کې ټول هغه څه موجود دي چې له یوې خوا څخه موږ ته د ټولنې په پېژندنه کې بصیرت راکوي او له بلې خوا د دغې پېژندنې په برکت موږ ته د ادراک را پښېږل کېږي چې هغو ته د خدمت مستقیمه لاره پیدا کړو.

زموږ فولکلور چې هرڅاد حقوقي تعاملاتو پسر اساس کېښلي دي او د نتیجې ته رسېدلی دي چې دلته هر هغه څه د پراخه لاسه مقه کوم چې یو کلتور پېژندونکي ورته اړتیا لري.

په دې اساس به هغه وخت کې په پښتو ټولنه کې د پر غنیمت آثار راټکل شوه او کې په فولکلوریکه برخه کې د تحقیق



ښاغلی «نوري»

لاري پسې تعقیب شوي وای نو باور دی چې نن به موږ ډېر څه ارلای. او په هغه وخت کې چې په پښتو ټولنه کې کوم لیکوالان راټول وه هغوی په داخلي او خارجي سویه د هیواد لویو سیاسي محرکو ته حرکت ورکوي. یوا هغي

سړي چې د دغه ملګرو له صحنې څخه غورځېدلی او په ګمنامي کې ژوند کوي هغه د هیواد د لوی فولکلوریست محمد ګل نوري دی. دغه ښاغلي څه موده په پښتو ټولنه کې کار وکړ او د پښتو د فولکلور په برخه کې ئې غنیمت آثار منځ ته راوړل خو متأسفانه ترنن ورځې پورې بیا موفق شوی نه یو چې بر هغو ژیاتوب راولو.

ښاغلی نوري (ملي هنداره) چې د پښتو شفاهي داستانونو مجموعه ده، پښتو متلونه، اصطلاحات، محاوري، سندري، لوبې، نومونه او داسې نور څه راټول کړل چې چاپ سوېدي او پر دغو آثارو روس په شوروي اتحاد، المان، انګلستان، هند، فرانسه، جاپان، چین او نورو ځایو کې تحقیقي علمي موسسات کار کوي او

دوی ئې زموږ د هېواد د کلتور په برخه کې غنیمت ذخایر بولي.

ښاغلی نوري د یوه لایق فولکوریست په حیث

یو وخت په رسمي مامورېت کې د عمومي مدیریت تر چوکۍ پورې کار کړی دی او بیا تقاعد شو خو دی وائي چې ما ته د تقاعد څو له حقوق یوازې (۱۲) زره افغانۍ ورکول شویدي.

تر تقاعد وروسته ئې دریشي وغورځول سر ئې لغ کې بو څو ته ئې له پښوړ کښل او په یوه کمیس او پرتاګه کې ئې د کندهار په هرات دروازه کې دوی کوندې

څې او بو تاغار مستي مخ ته کښېښووی څو کاله ئې دغه کار په داسې حال کې وکړ چې سپینه ږیره ئې رڅیګر او سپینې څڼې ئې تر اوږو اوږدې شوې وې او د یوه مجذوب الحاله سړي بڼه ئې غوره کړې وه.

اوس دا ښاغلی د کندهار د مطبعې د مدیریت د آرشیف د څانګې په لسمه رتبه بست کې د مامور په حیث کار کوي.

ښاغلی نوري له هغه وخت څخه چې د عمومي مدیریت پر چوکۍ ناست ؤ بیا تر هغه وخته پورې چې مستو تاغار ته ناست او بیا اوس چې د اجیر کاتب چوکۍ ته ئې تنزل کړی دی، په فلکوري برخه کې ئې له تحقیق څخه لاس نه دی اخستی، کار کوي خو خپل کتاب و نو څوک چا ته نه ور کوي.

کله کله چې قهرور شي نو د خپل تحقیق ډېر په ده پوري آثار څیري او غورځوي ئې.

همدا اوس چې زه د ده د ژوند ناظر یم نو لکه څرنګه چې د پښتو په فولکوریک برخه کې ئې څه آثار خپاره شوي دي هغو ته نور هم ور سره ده دی خو پدې مې پوره باور دی چې دا د څېړنې غنیمت ذخیره به هم داور او بیا او بو شو مه شي.

دا چې ولې زموږ محقق لیکوال دغه حال ته رسېدلی دی چې د خپل ژوند قیمتي پانګه په اوږدو او بو کې خوړ څوړی، د دې پوښتنې جواب په اجتماعي ټولنیکالو جستجانو پورې اړه لري. اوس اصل مقصد ته راځو چې د دغه نامتو لیکوال سره مصاحبه کول دي.

هر کې لومړی پوښتنه مې د هغه د کورني شهرت او عمر په باب وه.

ښاغلي نوري زما د پوښتنې د جواب د پاره د ځایه سره وښوریدی خپلې اوږدې تسبیح ئې چې غټې ږلې ئې او نسواری دانې لري، په لاس کې واخیستې او د تسبیح د دانو د اړولو سره سم ئې داسې وا ته وویل:

نوم مې محمد ګل، تخلص مې نوري، د منارې د میانور محمد صاحب لمسی مشهور په صاحبزاده چې تخلص مې د میانور محمد د نیکه او د نورزي د قوم د نامه په سبب «نوري» ایښی دی او عمر مې ۷۲ کالو ته رسیږي.

دیوې بلې پوښتنې په باب یې داسې څرګنده کړه:

زما آثار په لاندې ډول دي:

الف: چاپ شوي آثار.

۱- لیکڼه ښوونکی دوه ټوکه لومړی جز ئې د انشأ اصول او دوهم جز ئې مراسلات دي چې په ۱۳۱۷ کال چاپ شویدي.

۲- رلی هنداره دري ټوکه دوه ټوکه بیل بیل چاپ شوي او دریم ټوک اوس د کندهار په دولتي مطبعه کې د احمدشاه بابا د کتاب چاپولو د موسسې له خوا تر چاپ لاندې دی.

۳- پښتو اصطلاحات یو ټوک چې په ۱۳۲۰ کال چاپ شو.

۴- ملي سندرې او لنډۍ یو ټوک.

۵- متلونه یو ټوک.

۶- طبعي پوهنه یو ټوک.

۷- د پنیا تو نه څلور ټوکه.

۸- مدني اخلاق دوه ټوکه.

۹- مدني معلومات دوه ټوکه.

دغه پورته څلور کتابونه د معارف د کتابو څخه ترجمه ده.

۱۰- پښتو قاموس چې (۴۵) زره لغاته لري او ۴۵ زره سره پر ۴۵ زروکاړ ټوټو باندې ولیکل شوه او وروسته زما د لور (طیبو) په مرسته هر لغات د ردیف په لحاظ تر دوستي حرفه پورې پر ردیف برابره کړه شوه او

په دوه ټوکه کی چاپ شوی مګر زما خوا ر ی عبث و لاړ ی او نوموړ ی قاموس د پښتو ټولنی په نامه چاپ شو .

۱۱-رحمته اللعلمین کتاب دی چی د مصوری محمد احمد جاد المولی تالیف شوی کتاب څخه ترجمه ده او په ۱۳٤۱ کال کی د کندهار په دولتی مطبعه کی چاپ شو.

ب: غیر مطبوع آثار :

۱-ملی ادبی یو ټوکښ .

۲-پښتو آهنګونه چی تر ۲۰ زیات آهنګونه لری د آهنګونه ښاغلی فرخ افندی زما په لارښوونه په پیانو کی غږولی او د وسته ئی د هغه څخه نوټیشن ترتیب کړی دی .

۳-ملی دود یو ټوکښ .

٤-خوږ بانړی اردری ټوکه چی ټول حکایتونه او فکاهیات دی .

۵. د خوشحال خان حل اللغات یو ټوکښ .

٦-د عبدالقادر خان منتخبات یو ټوکښ .

۸. د احمدشاه بابا منتخبات یو ټوکښ .

۸- پښتو باغچی د پښتنو د زده کړی طرز دی یو ټوک .

۹ د اوحد غزا یو تصوفی کتاب دی یو ټوکښ .

۱۰-د یاراس تکلونه یو ټوکښ .

۱۱-د مینور سا له یو ټوکښ چی یره برخه ئی د کابل په مجله کی چاپ شوی ده .

۱۳-د نوری دیوان، مکمل نه دی مګر اکثره ئی د هیواد په مختلفو جریدو کی نشر شوی دی .

۱٤-ژوړ کندهار چی د کندهار د لرغونی او باستانی ولایت د زړو خرابو او غونډیو تعریف دی مکمل شوی او جایزه ئی هم اخستی ده.

ج ژباړه شوی کتابونه :

۱-د دوغنیا عمومی قوانین یو ټوکښ د هغه کتاب عربی (کیف تحافظ علی صحتکه) کتاب څخه ترجمه شوی دی .

۲-د دوغنیا ژوندون یو ټوکښ د (کیف تعاش ما ئته سنه) عربی کتاب څخه ترجمه شوی دی .

۳-د صحت ساتنه د (حفظ الصحی) د کتاب څخه ترجمه شوی چی د طلوع افغان په ور ځپاڼه کی بشپړ پر له پسی چاپ شوی دی.

٤-د شین خالی ناری .

۵- ۷۲ ډیالوګونه او ډرامی چی زیاتره ئی د هیواد په بیلو بیلو ځایونو کی په صحنو کی تمثیل شوی دی.

تر څو کلو پوری د ملی شورا د اصولنامو ترجمه هم زما پر غاړه وه. همدغه ډول می لاندنی پنځه ټوکه کتابونه د بدخشی مرحوم له کتابه څخه را نقل کړی چی پښتو، دری او ر ستانی او پشئی لغاتونه می هم پر اضافه کړی وه چی د دغه (۹) محلی ژبو لغاتونه می به یو جمله کی په (۹) ستونه کی دیوه مکمل قاموس په شکل ترتیب او و لیکل چی نو موړ ی کتابونه عبارت له سنګلچی قاموس، شغنی قاموس، واخی قاموس اشکاشمی قاموس او منجی قاموس څخه دی .

د پیا وړ ی لیکوال دوړ وستی جملی تر خلاصیدو وروسته می سمدستی څنګ و پوښتل چی تاسی د څه وخت را په دی خوا په رسمی مامو ریت شروع کړی ده

او هم مو که په فکر کی پاته وی د خپلو مامور یتو نو په باب معلومات را کړ ی ؟

په ځواب کی وویل :

د کو چنی والی څخه می د پښتو سره مینه درلو ده زما په خیال به ۱۳۰۰ ش کی د اعلیحضرت امان الله خان په دوره کی د کندهار دولت د شا ملا د په ښوونځی کی د پښتو ښوونکی په حیث د لومړ ی ځل لپاره مقرر شوم چی پسله څو کلونو د همایونی معظم اعلیحضرت د هدایت په اساس کوم و خت چی په کندهار کی د پښتو ادبی انجمن تاسیس شو نو لومړ ی عضوه ئی زه شوم .

بیا څو کاله وروسته د سردار محمد هاشم خان صدر اعظم په امر پښتو ادبی انجمن کابل ته نقل شو او د کابل د ادبی انجمن سره ګډ شو. هلته هم د انجمن عضو ه او

باته په ۳۲ مخ کی

امین (پالیال):

# فلسفه او د هغی لغوی څیړنه

د فلسفې لفظ د دوو یونانی کلمو څخه جوړ سوی دی (فیلو-سوفیا) فیلو د (ملګری یا دوست) او سوفیا بیا د (علم، حکمت او پوهی) په معنی ده.

د پورته لنډی څیړنی څخه د فلسفی لفظی معنی داډول افاده کیږی چی فلسفه (د حکمت ملګرتیا).

### د فیلسوف لفظی تحقیق:

لازمه ده چی د فیلسوف کلمه هم د لته یا لنډ ډول سره وڅیړو.

پخوانی یونانیانو په فیلسوف د (سوفوس او دا سوفاس) په نامه سره یادا وه چی سوفوس به ئی د (حکیم، پوه او پلټونکی) په معنی استعمالاوه. کوم چا چی به په یوه ځانګه کی څه نه څه معلومات درلود نو هغه ته به ئی د (سوفوس او سوفیست) خطاب کاوه.

څنګه چی د (سوفوس) د کلمی سره مود (سوفیست) کلمه هم د اوږه، د دی لپاره چی لوستونکو ته د دی نوم

د لیدو سره کومه اندېښنه پیدا نه سی ښه به داوی چی د غه کلمه هم په لنډ ډول سره تحلیل سی.

په یونانی ژبه کی (سوفسما او سوفیزا د تعلیم او سوفوس) کلمه څنګه چی پورته موهم یاد ونه وکړه د (هوښیاری-عقل او پوهی) معنی لری.

د (سوفیست) لفظ د سقراط څخه د مخه پر یو ډله فیلسوفانو اطلاق کیده او (سوفیسم) د دغو فیلسوفانو د مکتب نوم دی. د غه مکتب د سقراط، افلاطون او ارسطو له مکتب څخه پخوا د یوی ډلی ښوونکو له خوا

تأسیس سو. د لرغونی یونان په لومړیو وختو کی د (سوفیست) نوم د عالم او هوښیار - متفکر او څیرک په معنی چی خصوصاً د فیلسوف او حکیم سره مترادف ؤ، یاد کړی سوا و دا د دوی په نزد یو محترم نوم ؤ.

د پورته توضیح څخه ښکاره سوه چی د (سوفیست) لفظ د (سوفوس) سره یوازی لفظی تغیر لری خو مفهوم ئی یو دی. دا ؤ د فیلسوف د کلمی پخوانی مفهوم او اوس به ځانته

معلومه کړو چی د دغه لفظ ننني مفهوم څه او د کومو کلمو څخه جوړ سوی دی.

څنګه چی د فلسفی لفظ د یونانی کلمی په ځان کی نیولی دی د غه رنګه د فیلسوف لفظ هم د دوو یونانی کلمو لکه (فیلوس او سوفیه) څخه جوړ سوی دی.

فیلوس د (مینی او محبت) لرلو په معنی او سوفیه بیا د (پوهی او حکمت) په معنی استعمالیږی. نو فیلسوف د لغت له مخی د (علم دوست) او یا د (پوهی خوښوونکی) په معنی دی.

### د فلسفی تعریف:

د فلسفې د پاره ډول ډول تعریفونه سوي دي چی د هغو د جملې څخه ئی د لاندی څو تعریفونه د نمونی په توګه راوړو:

۱-د فکر طرز او روش ته فلسفه وایی.
۲-د ژوند د یو کړ او روش فلسفه ګڼل شوی ده.
۳- فلسفه کله د پوهی پر یوه ساحه او کله بیا پر بلی ساحی اطلاق کیږی.

٤-فلسفه یو ډول فکری او شعوری فعالیت دی او د دی فعالیت په مرسته انسان کوښښ کوی چی د کائیناتو اصل حقیقت ځان ته څرګند کړی.

٥. فلسفه یو ډول مداوم او منظم کوښښ دی چی غواړی ژوند د یوه کلی او اساسی ښکی څخه درک کړی او د کائیناتو سره د انسان د وند رابطه کشف کړی.

٦-فلسفه د کلی ترینو مسائلو څیړنه ده چی د هغو پاره د کلیت اندازه نه وی او د علومو په بحثو پوری ادعا لری.

(پاته په ۱۳۴ مخ کی)

د کندهار ولایت څارونپوهنې له پلوه:

دایو بزی په قلم:

# کواری او د هغو د بیلو بیلو جوړولو او دودول

## په کندهار کی د کاله په سوو زره کواری، سودی

### کواری چی او لنګونه جوړیږی چی ژموږ دنده میوه په هغو کی خارج ته وړل کیږی

کندهار د میوادسیمه سور او زراعتی سیمو څخه دی، په دغه لوی ولایت کی سربیره پر غنمو، جوارو او وریشو او نورو دانو، هر راز میوی کیږی او ژمه

دغه میوی دومره زیاتی دی چی تر خپلی اړتیا اضافه میوی لکه انار، انګور، مڼی، زردالو، او داسی نوری خارجی هیوادونو ته لیږو.

#### د کوارو جوړولو صنعت:



دلته څه کواره جوړونکی د کوارو جوړولو په حال کښی.

موږ له کندهار څخه د بهرنیو ځایونو ته دا هیڅ انار، انګور، زردالو، مڼی، شلیل، شفتالو، او نوری میوی په کرارو کی خارجی هیوادونو ته لیږو او د هغه وخت راهیسی چی خارجی هیوادونو ته دمیوو لیږل

شروع شوی دی په کندهار کی د کوارو جوړولو صنعت رواج او پراختیا موندلی ده.

#### د کواری ګټی:

په کندهار کی څلور ډوله کواری اوددل کیږی لومړی کواره، چی خارجی هیوادونو ته میوه پکښی استول کیږی.

دوهم سوده، چی میوه د ننه په باغ کی پکښی ټولوی او ګرځوی.

دریم کوارچه، چی تر کواری وړه ده او باغ ارونکی د باغ څخه میوه کور ته پکښی راوړی.

څلرم لنګ: هغه غټه کواره ده چی پښتنګی د باغ څخه میوی بازار ته پکښی راوړی او پرشاهی اخستی وی.

#### د کواری او دلو اښتی:

سوده او لنګونه د انارو د اښتو او کواره او کوارچه بیا د غزه د اښتو څخه اودل کیږی.

د غزه اښتی د خاشرود، د هراود، فراه رود کلات، مېل، او لښکر ګاه څخه کندهار ته راوړل کیږی.

د انارو اښتی د منی په موسم کی پری کیږی خو د غزه اښتی بیا د کال په هر وخت کی ریبی.

#### کوم اښتی اودلو ته تیاری ی؟

د کوارو جوړولو اښتی په هغه وخت کی اودلو ته تیاری وی چی تم و لری، که اښتی وچ وی نو ټی او بو ته اچوی.

دغه لښتي په دوبي کې يوه هفته او په ژمي کې يوه مياشت په اوبو کې ساتل کيږي او که تر دغه مودې زيات لښتي په اوبو کې وي، ورستيږي او پوستکي ئې وڅي او په اودلو کې ماتيږي.

هر کله چې لښتي د اوبو څخه راوکښل شي تر يوه ساعت تيريدلو وروسته بيا کواري ځني اوئ.

## لښتي په څلورو برخو ويشي:

خودسی لښتي د لنګونو جوړولو دپاره په کار يږي، سودې په ميانه لښتو جوړوي، دريمه درجه لښتي د کوارو دپاره چې عموماً ميوه خارج ته پکښې وړل کيږي او هغه لښتي چې ډېرې نازکې وي د هغو څخه هم د لنګو په اودلو کې استفاده کوي.

## د کوارو اودل:

کواري د اودلو په ډول جوړيږي داسې چې په قالب کې لښتي سره جار باسي او دوور وئ اوئ.

## په اوبو کې د کوارو ساتل:

هغه کواري چې ميوې خارج ته پکښې وړل کيږي د اودلو وروسته سمدستي په اوبو کې د پنځه څخه تر سوو رځو پوري ايښول کيږي او دغه کواري په دې ډول ډېرې ټينګيږي، هغه کواري چې دننه په هيواد کې په کار يږي هغه تر جوړولو وروسته په اوبو کې نه ساتي.

## کومې کواري ښې دي؟

سوداګران عموماً د انارو د لښتو څخه جوړې شوې کواري خوښوي ځکه نسبت نورو کوارو ته ډېرې ټينګې وي.

## د کوارو بيه:

هر کله چې په کوم کال کې ميوې ډېرې شوې او پريمانه ... ي نو خارج ته زياتې صادريږي او په دې وخت کې د زياتې غوښتنې له مخه د کوارو بيه هم نسبتاً لوړه ځي او جوړه په شل افغانۍ بيه لري او هر کله چې تقاضا کومه ... ي نو په هغه کال بيا کواري ارزانه او جوړه په دوولس افغانۍ خرڅيږي.

د لنګونو يوه جوړه پنځوس افغانۍ بيه لري.

## د کوارو اودلو مزدوري:

ځينې هغه کواره اودونکي چې خپلې پيسې نه لري چې لښتي په رانيسي او په خپله کارګاه کې کواري جوړې کې ي نو په مزدوري کواري جوړوي د لنګونو يوه جوړه په ۱۵-افغانۍ سوده يوه دانه په څلور افغانۍ اود کوارو يوه جوړه په څلور افغانۍ مزدوري جوړيږي.

## يوه کواره په څومره وخت کې اودل کيږي:

چالاکه او فعال کارګران په يوه ساعت او پنځلسو دقيقو کې يوه کواره اوئ او په شوارو ز کې اته ساعته کار کوي.

## په کريټو کې د ميوو استول:

د هيواد په نورو ولايتونو کې عموماً ميوې په کريټو کې خارجي هيوادونو ته ليږي او اوس په کندهار کې د دم کريټو استعمال رواج لري.

## کريټ په دې که کواره؟

هغه ميوې چې ډېرې نازکې وي او ژر خرابيږي لکه زردالو ليرې هيوادونو ته د هغو ليږل په کوارو کې ښه دي ځکه ميوه پخه پکښې پرته وي او هوائي هم نه وي بنده.

نږدې ځايونو ته په کريټو کې د ميوې استول ښه دي، هم دغه سبب دی چې هند ته انګور او انار په کوارو او پاکستان ته په کريټو کې ليږل کيږي.

په کندهار او شاوخوا سيمو کې لږ تر لږه زرتنه په دغه کسب اخته دي او د کاله په سوو زره کواري، سودې او کوارچې اوئ او د دغه صنعت د لارې د خپل ځان او عيال نفقه برابروي.

په کليو کې کروندګر د فراغت په وخت کې کواري جوړوي ځکه يوازې په دغه کسب سره د هغو ګذاره نه شي کيدای او بل شغل هم ورسره لري.

هغه کسان چې کواري اودل ئې مستقله حرفه ده هر کله چې د کوارو جوړولو بازار سوړ شي نو بيا نورو خوارېو او مزدوري ته لاس اچوي مقصد دا دی چې د ځان او کورنۍ نفقه او پوشاک برابر کړي.

(پای)

# خوب او خوب لیدل

## دوهمه برخه

موږ ټوله پوهیږو چې تنفس تنګي یوه ډېره خطرناکه ناروغي ده او ددغې تداوي معالجه خورا ګرانه ده حتی زیاتره وختونه ډاکتران فلجوي. ددې ناروغۍ علت نه یوازې په تنفسي مجراؤ او سږو کې د عفونت

پیداکیدل دي، بلکه د مرکزي اعصابو پورتني برخې اختلال هم ددغه په پیداښت کې زیاته اغېزه لري ددې برخې د عصبي فعالیت بدلون او د اعصابو تهیج او

رخوت ترمنځ د تعادل ګډوډي د ناروغۍ په ترڅ کې ډېر زیات اثر ښندي او په دغه ځای کې هم الکتریکي

خوب د مغز د سلولو د فعالیتو د کنټرول لو لوی وسیلې په حیث په کار اچوي.

د یوه (٤٥) کلن ناروغه د پاره چې د ذات الریې او د اعصابو په تشنج اخته او زیاته تنفس تنګي ورته پیښېدل او هیڅ دوا اغېزه نه پاندې کول، تصمیم ونیوی چې د

الکتریکي خوب څخه کار واخلي د الکتریکي خوب په اوږدو کې په هغه لحظه کې چې ناروغ ته تنفس تنګي ورپیښه سوه، د هغه د بدن څخه ئې د برېښنا جریان تېر کړ سمدستي د ناروغه تنفس نارمل حالت غوره کې او

ترڅو چې وروسته د لو ... ی عمل د پاره آرام پیدا سو ترهغه پورې ورځ وروسته بیا تنفس تنګي حمله پاندې ونه کړه خو د اپلاچ پر ضمیمه وه د الکتریکي خوب تر پنځو جلسو

وروسته د ناروغ ناروغي په قطعي ډول ښه سوه او د روغتون څخه رخصت ووت.

په دوهم جهاني جنګ کې چې المانیانو لندن بمباري کاوه د ګیډې د زخم ناروغي تېته سوه او کله چې

المانیانو خپل لښکري د انګلستان څخه بې ځایه روته نقل کړې ذکر سوې ناروغي ورکه سوه.

دغه پیښه او داسې نور مشاهدات څرګندوي چې د عصبي دستګاه اختلال د خارجي تأثیر په نتیجه کې خصوصاً

سخت تکانونه، پوره او وهم د ګیډې د پاسه د ی زخم په پیداښت کې ډېره زیاته برخه لري. ډاکټر ا...

دغه ارزښتناکه ټکي له مخې د معدې د زخم چاره د عصبي سلولو د فعالیتو د منځته بدلو له لارې د ځول ځول خوبونو په وسیله اټکل کوي.

یو ناروغه چې د ګیډې زخم در لود روغتون ... مراجعه وکړه دغه ناروغه د ګیډې د سوي او د رد...

استفراق او بې خوابۍ څخه زیات په تکلیف وو ځکه ... چې د مغزیو دواؤ په هغه باندې کمه اغیزه وه. څند ...

نو ډاکټرانو تصمیم ونیوی چې د الکتریکي دستګاه په وسیـ... بې ویده کړي. دده معالجې شل جلسې وخت طول پیدا کړ... په هره جلسه کې ئې تر ٤٠ دقیقو وروسته ماشین له فعالیـ...

اچاوه. په دې توګه به ناروغه د څو ساعتو د پاره آرا... خوب کاوه.

په شپږمه جلسه کې درد لږ سو، په اوومه جلسه کې... قې او استفراق ورک او په دولسمه جلسه کې د ګیډې...

زخم پر مخ ښه سو ناروغ خوب خوړ کې او وزن ئې یا... او له روغتون څخه رخصت سو.

د پورته مثال څخه څرګندېږي چې دو ... فشار تر څو نه اندازې په اعصابو پورې اړه لري.

په منځنۍ ختیځ د پوهست سیند پر غاړه یو کوچنی ښار دی چې د سیند کښته غاړه داوبو د زیاتوالي وخت کې تر اوبو لاندې کیږي او د هغه لوړه غاړه هر ډول خطر څخه بچ وي د دوبنې د ښار ډاکټرانو

سیند د طغیان په وخت کې د ښار او سیند ونکـ... ترمنځ ډنې لاندې ونیول. په نتیجه کې څرګنده سو... چې د سیند په کښته غاړه کې د فشار اندازه ډېره لوړه پیدا... ځکه چې مستقیماً داوبو د خطر سره مخامخ و...

خو د سیند په لوړه غاړه کې چې د اوبو د خطر څخه په امان وه هیڅ فشار نه لیدل کیدی. د اوبو [...]ر کښته کیدو وروسته هغه خلک چې د وینې په فشار به اخته سوي وو [...]یر ته عادي حالت ته [...]اکرز بدل.

د وینې د فشار ناروغي د [...]ړی زماني راپه دې خوا د [...]ېپنو تیزم او د خوب د دوا په وسیله [...]په ډیر بریالیتوب معالجه کوي [...]و په ځینو روغتونو کې د ناروغۍ [...]الکتریکي خوب د لارې درملنه [...]ږي. د دې طریقې نتیجه د [...]اکتر انو د پاره ډیر مهمه [...]وري ده ځکه په لومړي جلسه کې [...]ناروغه د وینې فشار (د پارې د ستون د ۱۰ ۵ ۱ [...]لي متر) پوري کښته کیږي او [...]الکتریکي خوب د ۱۵ څخه تر ۲۰ [...]سو پوري د دغې ناروغۍ ټوله [...]ښې بالکل له منځه ځي. د ا باید [...]و یل سي چې الکتریکي خوب د [...]عصابو د اختلال د ټولو ناروغیو [...] پاره ګټور نه دی نو فقط یو مجرب [...]اکتر باید دا تصمیم ونیسي چې [...]کومې ناروغۍ له دغه لارې [...]معالجه کیږي.

### باید خوب وو ینو:

د امریکایي پوهانو څخه [...]یوتن چې ډاکتر کلیتمان نومیږي [...]د روحي ډاکترانو په ټولنه کې [...]څرګنده کړه.

خوب بیله خوب لیدو ډیره [...]خطرناکه ناروغي ده ډاکتر کلیتمان او ملګرو ئې د ناروغه [...] سترګو حرکت د بیدیدو [...]په وخت کې تر مطالعې لاندې [...]او نیولي یوې مخصوصې دستګاه [...]د سترګو جزوي ترین حرکت [...]حتی د چپ مود پڅیدو په وخت کې [...]ت کاوه. ددې پلټنو په نتیجه کې [...]ځرګنده سوه چې د بیدو کسانو [...]د سترګو تخم د شپې څوو اره [...]حرکت کوي هر حرکت تقریباً ۱۰ [...]یا ۲۰ دقیقې په بر کې نیسي او

دوی بیا هم ورسره یوه ملګري وي. په رښتیا هم پوهانو چې د سترګو د حرکت په حال کې ئې د خوبه داو بیښ کې، دا ئې ځرګنده نښه ده چې خوب ئې لیدی. ډیر زیات کسان خوب نه وینې یا ډیر لږ خوب وینې ځینې کسان هره شپه خوب وینې. ازموینو دا ښودلې ده هغه وخت چې څوک بیدیږي نو لومړی په ډیر عمیق خوب بیده شي چې دا خوب د شپې تر هري شپېږ دروند وي،

تر دوه ساعته وروسته خوب او خیال انسان ته را ځي چې تر سحاره دوام کوي. په دې پوري خبره دا ده که یو څوک د خوب لیدو په حال کې داو بیښ کړی که څه هم

او یا ئې ساعته خوب ئې کړی وي بیا هم زهیر او پژمرده ښکاري او هغه څوک چې خوب نه وینې، که ئې د شپې څوو اره داو بیښ کړي بیا هم بیدار ده معلومیږي نو. محققان دا تائیدوي چې انسان نه باید یواځې بیده سي بلکه خوب هم و وینې. د خوب په وخت کې د زړه ضربان د ۷۵ څخه ۶۰ ته رسیږي د بدن تودوخه او د میتابولیزم اندازه لږیږي تنفس د ۱۶ څخه و ۱۲ ته رسیږي.

د وینې دوران تنظیم پیدا کوي.
ډاکتر کلیتمان چې ۴۰ کاله د خوب په باب مطالعه کړې ده وائي: د خوب د پاره اندازه نسو ټاکلای ځکه ځینې په ۲۴ ساعته کې ۱۰ ساعته خوب ته اړتیا لري او ځینې لکه ډاکتر اډیسون ۴ ساعته بیده یږي. ځینې بیا چې د ستړیا احساس وکړي، سترګې پټوي کړي او استراحت وکړي خو د خوب د پاره په ۲۴ ساعته کې ۸ ساعته او سط حد بلل کیږي.

### د غرمې خوب:

ډاکتر ټیلر وائي: د غرمې خوب، د شپې خوب تنظیموي.

(پاته په ۳۴ مخ کې)

(د ۹ مخ پاته)

## فلسفه او د هغې..

د پورته تعریف په نتیجه کې ویلای سو چې فلسفه د علومو ادامه او د هغو سرچینه ده یعنې فلسفه د علومو څخه جلا نه ده،
۷- فلسفه عبارت ده د جهان او طبیعت د علمي توضیح او تشریح څخه.

### فلسفه څه ته وائي؟

فلسفه یو عندي نظر نه دی بلکه یو مشخص تفکر دی او کولای سي چې ټوله علمي نتیجې په کائناتو کې وځایوي، د غه رنګه فلسفه غواړي چې د جهان و ډیرو مسائلو ته روښانه جواب ورکړي.

فلسفه د هغو اصولو او میتودو د نتیجو سره توافق کوي چې د هغو د تحقیق او څیړنو په واسطه سره عمومي او کلي فکرونه و میدان ته را ایستل کیږي.

### د فلسفې مفهوم:

فلسفه عموماً دوه کلي مفهومونه لري: چې یو ئې پر (مادي) او بل ئې پر غیر مادي (روح) باندې اطلاق کیږي.

### د فلسفې موضوع:

د فلسفې موضوع د وجود او هستي، حقیقت، د کائناتو سرنوشت او منبع، او د انسانانو رابطه د عالم جهان سره ده.

# ميرمن بايد د خپل سن او سال سره مناسبه جامه غوره کړي

تهيه کوونکې ميرمن «لاله» ذکزی:



ډېر ليدل شوي دي چې ځينې ميرمنې د خپل سن سره مناسبه جامه نه انتخابوي په داسې حال کې چې د هر سن و سال د پاره خاص ډول جامې او موډ موجود دي.

په رښتيا هم د هرې ميرمنې شخصيت او سليقه د هغې د لباس څخه څرګند يږي. فرضاً که يوه ميرمن چې سن ئې تقريباً پنځوس کالو ته رسيږي د يوه پطلون او جاکټ سره ووينې څه احساس به وکړي؟ آيا هغه به يوه باسليقه او موقع شناسه ميرمن وبولي او که به په زړه کې پر هغې انتقاد وکړي؟ څرګنده خبره ده چې په زړه کې به دروګرزي چې د دغه لباس پر ځای

که ئې يو څه سنګين بالا پوښ اغوستی وای نو به ډېر ورسره مناسب وای. د لباس انتخاب د هرې ميرمنې ضروري صفاتو څخه دی چې هغه ته بايد ښې پاملرنه وکړي. او د هر محيط سره برابر لباس انتخاب کړي.

د کور او د باندې لباس بايد توپير ولري يعنې هغه ميرمن چې د باندې وزي بايد مستور لباس انتخاب کړي چې د خلکو د هيبت نا کو سترګو سره مخامخ نه شي او هم

اسوده خپل ټاکلي ځای ته ورسيږي زموږ په محيط کې د ټولو سترګې و تعليم يافته ميرمنو ته ور اوښتي نو دوی بايد سنګين او باوقاره او اخلاقو در اوونکي وي چې د

نورو د تشويق سبب شي نه دا چې د يوې ميرمنې ناوړه رويه د نورو ميرمنو د قانوني آزادۍ د مخنيوي سبب شي او د سپي بانو بانې ځان ته جوړه کړي.

که د لباس د انتخاب په وخت کې د خپلې يوې دوستې سره مشوره وکړي دا به ډېره ښه وي د خپل د دوست د

رښتيا خبرو څخه مه خفه کيږئ فرضاً يوه دوسته مو درته ووائي چې دا ګوګر يا دا ډول د وخت ستا د پاره مناسب نه دی بايد په ډېر ورين تندي د هغې څخه شکريه وکړي.

ځکه د مخه تر دې چې د نورو در ته پام شي او تبصره در باندې وکړي، تاسو ځان اصلاح کړی او د خلکو د انتقاد او تبصرو څخه ونيسي د بده مرغه ځينې ميرمنې سته چې د حقيقت خوږ والی په تر بخوالی قياسوي او د حقيقت د ويلو سره په خوابدي او بد ويلو لاس پورې کوي. دا ډول ميرمنې که څه هم تر زياتو تبصرو لاندې راځي خو بيا هم کوم دوست ئې دومره جرئت نشي کولای چې

عيب ئې ورته څرګند کړي ځکه د هغې د خوابدي سبب ګرزي.

نو ګرانو ميرمنو هر وخت بايد حقيقت ته غاړه کيږدو او په دې ډول د ډېرو ناوړه مشکلاتو د منځه يوسو او په هر کار کې د مشورې څخه کار واخلو.

## ځينې مهم ياداښتونه

که پر مځکه غوړ وار شي او پادبدن يو ځای مو په يوه دواد نه کې زخمي شي نو د پخوا او يو کمپرس يا فشار مه هيروئ که په دغه اوبو کې ځينې ګټور بوټي لکه ګل ختمي، ګل بابونه او داسې نور دم کړئ تاثير به ئې زيات شي.

د دې لپاره چې ميږيان مو د غذائي موادو د تنفس مزاحم نه شي لازمه ده چې د تنفس په وه برخه کې څه تازه جعفری ګلان په يوه ګيلاس کې کښيږدئ.

آيا پوهيږئ چې په هغه اتاق کې چې ژوند او يا مطالعه کوئ تر کومې اندازې بايد رڼا ولري؟ د متخصصينو د نظريې مطابق بايد هر مربع متر شل واټه رڼا ولري.

# مور د پوهانو له نظره

مور آسمانی فرښته ده.

(دومیستر)

لویه بدبختي او د ژوند محرومیت مې د مور نه ارول دي.

(عربي شاعر)

ښه مور تر سلو استادانو او ښوونکو غوره ده.

(ژرژهربرټ)

هغه ښکلې رنګ چې ما لوملی او پیژندلی د مور د سترګو رنګ و.

(لانګ فلو)

بې موره کور ګور دی.

(بالزاك)

په هر ځای کې د کوچنی ښه او بد په مور پورې اړه لري.

(ناپلیون)

د خپل مور او پلار سره داسې او سه لکه د خپل اولاد څخه چې هیله لري.

(شکسپیر)

مور د طبیعت لوی شهکار دی.

(ګویټه)

یوازنی ښځه چې آزارنه رسوی مور ده.

(حجازی)

هر انسان په قول عالم کې یوازې د خپلې مور د زړه څښتن دی.

(استیفر)

# غوره ټکی

## ډیره په زړه پوری ملګری:

د یوه لوی لیکوال په عقیده، تر ټولو محبوب ترین دوست د یوه سړی د پاره، تر وادهٔ مخه د هغه مور ده، تر واده وروسته د هغه ښځه او تر ټولو کاله وروسته د هغه لور ده.

## د کوزدې مراحل:

کله چې یوه نجلۍ او هلك کوزده کوی، هلك خبری کوی او نجلۍ غوږ نیسی او کله چې واده وکی نجلۍ پر خبرو راځی او هلك چپ پاته کیږی، خو تر لسو کالو وروسته دواړه خبری کوی ګاونډیان غوږ ورته نیسی.

د ښځې ژبه د هغې سترګې دی، تاسې کولای شئ په یوازې کتلو سره د هغې خیالات او اندیښنې درك کړی.

# رومیان پلو

لازم مواد:

| | | |
|---|---|---|
| توری غوښې | | ۱۲ خورده |
| غوړی | | ٥ خورده |
| پیاز | ٤ | خورده |
| اعلی وریجې | ۱٦ | خورده |
| درومیانو او به | ۸ | خورده |
| مالګه | ۱٤ | مثقاله |
| قند | ۱۲ | مثقاله |
| هوږه | ۲ | مثقاله |
| کرکمن | ۲ | مثقاله |
| کوچنی میده هیل | ۱ | مثقال |

مرچك د ضرورت په اندازه.

# د پخلی طریقه

غوښې میده میده د غوړی سره اخته کې پیازی ئې په غوړو کې سرې کړې څو ګلابی رنګه سی. وروسته غوښې کرکمن او د مالګی نیمې برخه پر سره کړو پیاز وو اچوی څو غوښې سرې او پیاز حل شی. وروسته د رومیانو او مرچکو او به پاندی اضافه کړی. او پریږدی چې غوښې ښه سری شي او پر غوړو راسي.

پاکی کړی وریجې چې موخښتې کړی وی صافی کړی. له څه وریجې د دیګ په تل کې هوارې کړی او غوښې پاندی واوړی. پاته وریجې، هیل، مالګه او بوره یو ځای او په دیګ کې ئې واچوی. څه او به پاندی اضافه کړی او پر او ړ پاندی ئې کښیږدی څو وا ښي. کله چې او به ئې څه وچې سی او رئې لږ کی او د دیګ پر سر هم څه اور واچوی. (۱۵) دقیقې ئې پریږدی وروسته ئې د اور څخه ایسته کړی. د دیګ سرپوړنه او د دیګ د پغلو وریجې راټولې کړی. بیرته د دیګ سر پاندی کښیږدی. د سر دیګی شاو خوا ته او ړه ور کې او او ر پرواچوی. ترنیم ساعت وروسته وریجې د خوړك د پاره تیاری دی.

(۱۵مخ)

# دسوړ زمري باباز يارت

سپین بیرغ باندی رپیږی    سور زمری بابا زیارت دی
پو له بله عهد پیمان کړی    پری داغونه پښتون ملت دی
هر طرف خیالی تیپو له    تمه واحشر د قیامت دی
گرز د پښتونی پورته شوی    د آسمان پسر مخ اوچت دی
تر شنکی آسمان لاندی، سپینی تودی دی ځلیږی
محک ریږ دی له هیبته، پښتانه سپاره تیر یږی

❀❀ ❀❀

پښتنو مسر که پرنسي ه    انتظار ئی کشران کړی ی
وائی: «ځوک به موږ شی مشر    چه بیادا کاروان روان کړه
د میړو نیکو په څیر ئن    به خپل لاس معمور جهان کړی
د پلار و ځکلی وطن مو    په همت سر . ه و دان کړی ی
به ابرو پت او د تازه کړی، شی لعبی ئی د اسی پور ه
چی د سقور و سپینی سترگی، بر یښوی د ځمکی لور ته»

❀❀ ❀❀



سپار ه پلی لو یو کم ټو ل    منتظر د زیارت خو ا ته
چی به ز موږ د ملت و اکی    وسپا ر لی شی و چا ته
مشران د زیارت خو له کی    گور ی یود پل سلا ته
صابر شاه فقیر ښکا ره شو    خول ئی د او ږد احمد شاه ته
د غنمو وږی خول وو، وی ټومبه ده په سر کی
مشرانو ږری آمین کړ، څه چی وه په دی محضر کی

❀❀ ❀❀

دزیارت و شاو خوا ته — چې ماسې او ننداري شوی
«دور دور دا احمد شو» — د ځلمیانو دا نارې شوی
دغو پښکو چې هسې اړي — پښتنې تورې تېرې سوی
د غلیم د زړه ګی مر اندی — هم له دې خبره پرې شوی

احمدشاه په احترام چې، ورو لاړو صابر شاه ته
صابرشاه په خوږ امینه داویل و احمدشاه ته:

# د صابر شاه وینا

تخت و تاج دې مبارک شه — د پښتون ټبر ځلمیه
د املت دې په تا لوړه سي — پر غلیم سې بریالیه
ستر واکمن شوې د دې خاورې — رب دې ستر لره ځلمیه
د اولس به غم شریک سه — ملت ویښ کړه ننګیالیه

بو ګړی غفلت و نه کړی، واکمنی ستاسو له دی پسه
په دردو ئې ځان خبر کړه، لاس دې مینځه له هوسه

❀❀ ❀❀

«د املت سپینه صفحه ده — ستا ادما لو ته ګوري
ټول بې روحه بو جسد دی — څه شو دا که ظاهر ښوري
بې درمانه پروت رنځور دی — دا رو رو به تر ده پوري
پسه همت ئې پاڅوه زر — دزاړه عظمت پسه لوري

استعداد ئې خو آه چې، مربي ورته پکار دی
تش بو کل چې وي له تاته، نو دا پرو کی پټ انګار دی»

❀❀ ❀❀

«نو د هیڅ شي کمی نشته: — خو تنها چې تربیه سي
په بیدار روح ئې ژوندون وی — له تقلیده بیګانه سي
بو د بل په غم شریک وی — له نفاق څخه ګوښه سي
خپل ځان و پېژني هسی — چې پر ځان باندي تکیه سي

اوس نو ستاو لاس ته ګوری ملادې وتړه احمده!
دخپل قام په خدمت پاڅه، مرستهٔ دې الله له احده»

❀❀ ❀❀

«خدای خو ته ددې واکمن کړی — مګر تا ته فکر بو به
حشر تو به ته دی آسانه — وظیفه ده چې پرهلو به
خو اربابای ته پوشان ګوره — هیڅ فرد کم نه وي له زوره
لوړه وی دي رب هر وخت کښې — دغریبو زړه و له ور و به

آرامی دعان مه غواړه، عیاشي هلاکت دی
ستا سرور و استراحت ټول، په آرام کښې دملت دی»

«نور بیا»

❀❀ ❀❀

# دلوب ګلونه

تهیه کوونکی : طالب

## دیدار

دی راغی، زما څنګ ته کښیناست. ګرزه وینی شوم، آه هغه خوب څه بد و، څه خوب او زما دپاره څه لذت و. دی راغی، هغه وخت چه شپه آرامه او چپه چپتیاوه، دده په لاس کښی بربط و چی په خوږو نغمو ئی زما خوب و نازاوه.

افسوس، زما ټولی شپی ولی داسی ضایع تیریږی؟ آه زه ئی تل د هغه چا دیدار هیروم چی د هغه په ساه زما خوب خوږ او خوندوری.

## ګلګون شراب

چی می خپل مین نیولی تر آغوش دی
د جهان هوس می واړه فراموش دی
ساقی زه چی هوښیار نه یم باده راکړه
لیونتوب د لیونیو پرده پوش دی
چی پرون می اهانت د میخور وکړ
ئن هغه د میو ډك سبو په دوش دی
هدایه، وقایه څه اسولی وما تـــه
چی زما د می خانی په آواز ګوش دی
د ګلګون شراب د کومی میخانی دی،
چی صوفی ئی په جرعه سره مد هوش دی

د بهار په وخت به څه له میو اوړم
چی سرود د مغنی په نوشانوش دی
بیا به دا ګلونه نه وی میخوری کړه
د بلبلو په آ واز کی دا سروش دی

ډیر د بادسواره په خیال تر ما تیریږی
همیشه په دی بازار کی پرشاپوش دی
چی په ډیر ارمان د یار له مخه بیل شی
د «خوشحال» په برخه هر کله خروش دی

«خوشحال خان خټك»

## نګاری سترګی

ماچی و لیدی بیماری سترګی ستا
خو فتنی لری تیاری سترګی ستا
د زړه وینه ئی له سترګو څڅه څاڅی
چاچی و لیدی خونخواری سترګی ستا

زه به ستا تر سترګو سل ځله قربان سم
که را پورته کړی خماری سترګی ستا
همیشه چی می ګریان لری پو هیږم
جوړه وی می پر مخ لاری سترګی ستا

هغه دم جنون اثر را باندی وکا
چی به زړه کړم پری واری سترګی ستا
د هوسی سترګی داهسی شوخی نه دی
لکه شوخی دی نګاری سترګی ستا

ډیر عالم بی دی تر حده خراب کړی
اوس به ماکا هغه چاری سترګی ستا
د «مسکین» پر بیداری به آفرین کا
که څوك وو ینی بیداری سترګی ستا

«مسکین»

## ګلاو ریحه

په دنیا کی که وباده که طاعون
پاکوم بل مرض چی سوځی پری لیمون
هغه واړه می پر سر باندی قبول دی
پښتانه په منځ کی نه غواړم بیلتون

# مخمس د حمید بابا پر غزل

زمانه چې په هوس د یار پر کوی لاړه
د جفا په تیغ بیلې سوې الوی لاړه
هم تر سترګو مې د زړه نم لکه جوی لاړه
ددې دهر د چمن د ګلو بوی لاړه

دخوبانو څخه هم د مهر خوی لاړه

له ازله مې ده مینه د خوبانو
که هر څو د ابادې خانې بیدردانو
قبول کړې مې دي هجر پر چشمانو

نه له ما د مینې خوی ځي د بتانو
نه د جور و جفا رسم د دوی لاړه

چې مې بر ښوده پر مینه نام و ننګ ناصحه
ګرزوم زه خوار کچکول په څنګ ناصحه

پر زړه باندې له غمه یم څو رنګ ناصحه
اوس به ځي له مانه عشق په څه رنګ ناصحه

چې له نوکه تر کوڅې مې موی په موی لاړه
که هر څو مې بدن ورته دی لمبو ته

په اشنامې د بنګ حیران دي و مغز ونه
خدای دې نه کي زما مینه سپینو سرو ته

جستجوی به مې روح وکي وو تو ته
که له زړه مې دخوبانو جستجوی لاړه

د هجران له لاسه وچ حلق په اوند نشي
د یعقوب غوندې په سترګو به ړوند نشي

چې بې اور د بیلتانه پسې توند نشي
په نو خطو پسې تللی زړه موند نشي

د څه ورک سي چې به شپه داور په سوی لاړه
که ځ زما سر د جفا په تیغ غوڅیږي

باد زړه به وینو هر عاشق اوبیږي
که د اوښکو ئې سیلاب پرمخ بهیږي

دغه سیند د اباسین چې لیده کیږي
له دریا به مې د اوښو تری جوی لاړه

پر سکرو قود هجران چې کباب یږم
یا چې بوه غوندې د و بره څه و بلیږم

## د تغافل دارو

لړ لې بې په غم زما ژوندون لیکلی دی
خوناب زما دا و ښکو ئې جیحون لیکلی دی

و تیغ ته د جفا مې قهر داسې دی سپر کړی
چې عشق د وفا زما څخه مجنون لیکلی دی

پریشانه تور طالع زما ئې هم لکه ستا زلفې
بوچول سره ورته په مضمون لیکلی دی

علاج د ضعیف زړه کړی د وه عنا به د سرو لبو
دغه جز په نسخه کې افلاطون لیکلی دی

معشوق ته ئې ښکلاو استغناو جفاور کړه
عاشق ئې برده یاره و مادون لیکلی دی
رنځور د محبت ته ئې بستر د جوړه بدو
د تور لحد په خاورو کې موزون لیکلی دی

و ګل ته ئې پنځه ورځې زینت ورکړه به بڼ کې
بلبل ئې په چغار سره محزون لیکلی دی
دارو د تغافل په تحمل سي «ننګیا» لیه
افسوس چې د پرهیز ئې شوا خون لیکلی دی

عبد الرحیم «ننګیالی»

### دژوندانه لار

ژوبربه ستا په سبب خوب د راحت و کی
که زانګو په شان نه ورک د ځان آدام کړی
«شیدا» زده کړه د آفتاب ګرم روبی
لار به طی د خپل مقصد په یوه ګام کړی
«شیدا»

که منصور رنګه په دار باندې ځي بیږم
یار په پند د رقیبا نو لاړ بو هیږم

چې له ما ئې هغه عهد و هغه روی لاړه
د مینو همیشه یار ته زاری ..ه

چې په پیغه ئې د مینې لوخواری ده
داغ د هجر پر زړه ماشه د «ریدی» ده

په هیچا باندې نیاو نشي ای حمیده
چې د ترکو سترګو مې، که خوني نوی لاړه




تهیه کوونکی : کریمي

# ځوان فکر او ځوانه انرژي، ځوان جهان جوړوي

په رشتیا هم که د نړۍ په هر ګوټ کې چې کومې پرمختللي ټولنې لیدل کیږي، هغه ټولې د ځوانې مفکورې او ایډیالوژۍ په اساس د نیکمرغۍ پړاو ته رسیدلې دي. په دې توګه چې ځوانې مفکورې په هر وخت کې نوا بتکار په لاس کې نیولی او د ځوانې انرژۍ د اتحاد په اساس یې هغه ابتکار ترسره کړی دی.

یعنې د فکري ابتکار سره عملي اقدام بولا زمي او ضروري امر دی، په یوه ټولنه کې که څه هم زیات ابتکارونه منځ ته راسي او هغه ته د عمل جامه وانه غوستل سي نو هغه به د سیند پرمخ، د موج په څیر عبث ولاړه سي. پرمختللو ټولنو د یوه ابتکار په عملي کیدو سره بل ابتکار ته لاس هم کړی او

د ابتکارو سلسله یې تل جاري ساتلې ده، څو ننني بریالیتوبونه یې ترلاسه کړي دي، د مثال په ډول سپوږمۍ ته د راکټ په استولو سره آرام ته نه دي پاته سوي، بلکه

د نورو سیارو د تسخیر د لو مفکوره هم ورته پیدا سوې ده. دلته نه باید ځوانه مفکوره او ابتکار یوازې

په ځوان شخص پورې تړلی و بولو بلکه دا عمل چې د ټولنې د انکشاف سبب کیږي، په هر مرحله د سپینو کسانو د مغزو څخه هم تراوش مومي.

د بده مرغه زموږ د ځوانانو مفکوره په عین ځوانۍ کې د ضعف او سستۍ سره مخامخ دي چې د هغو څخه د هیڅ ابتکار د زیږیدو هیله نسي کیدای. نو دغه زموږ د پسماني لوی علت دی چې یا ابتکار نه زیږي او یا که چیري ابتکار هم منځ ته راشي د هغه د عمل ساحه ډیره تنګه وي او یا دا چې بیله کومې ګټې د هغه په تخریب پسې ملا تړل کیږي. نو ددې خبرو نتیجه دا سوه چې د مترقي فکر او نه ستړي کیدونکي قدرت د اتحاد او یووالي په نتیجه کې د ټولنې پرمختګ حتمي او لازمي دی.

دا صحیح ده، چې په بیلو بیلو ټولنو کې بیلې بیلې ایډیالوژۍ موجودې دي او د هغو ترمنځ تضادونه ستخود اخبره نه باید داسې تعبیر سي چې دا تضادونه د ټولنو د پرمختګ په لار کې خنډ کیږي او د هغو د انکشاف مخه نیسي، بلکه دغو پرمختللو ټولنو و مشترک هدف ته د رسیدو په لار کې خپل ټول تضادونه او اختلافونه یوې خوا ته پرې ایښې او په یوه اتحاد او اتفاق یې د خپلو ټولنو د پرمختګونو په لار کې ګامونه اخیستي دي. چې دغه اتحاد او اتفاق، په بیلو بیلو ساحو د ابتکار او د هغه د عملي کیدو زمینه برابره کړېده بر عکس په وروسته پاته ټولنو کې چې نفاق او ځان ځاني یې د ځوانانو په پیښه سوې ده، د ابتکار او عمل زمینه یې هم د لاسه ورکړې ده او هري ډلې د بلې د محوه کیدو د پاره به منفي ابتکار لاس پورې کړی او ټولنه یې د پسماني لور ته کشولې.

که څه هم د یوې ټولنې پسماني زیات علتونه لري خو دلته ځوانان، چې د ټولنې محور د دوی په لاس دی، باید تر هر څه د مخه ځانونه په ځوانه مفکوره ملبس او د هغې د عملي کولو په لار کې بې تاو کړي او یو علمي، فکري او سیاسي وحدت تشکیل کړي، څو دا وروسته پاته هیواد د نړۍ د مترقي هیوادو سیال وګرځوي.

(۳۰ مخ)

# د بریژیت باردو انتحار

بریژیت باردو ۳۷ کلنه فرانسوی لوبغاړې چې د سینما په عالم کې جهانی شهرت لری، په دې وروستیو وختو کې د ځینو ملحوظاتو له مخې په خود کشی لاس پورې کړې، یعنې ځودانې د خوب ګولۍ ئې وخوړې او د لاس رګ ئې پرې کړې، څو ورځ ته خاتمه ورکړی. خو د هغې د سکې ښو ونکي د پیښې څخه خبر سو او د هغې فامیلي ډاکټر ته ئې اطلاع ورکړه.

نو سمدستي ډاکټر حاضر سو او د مخه تر دې چې کار تر کار تېر سي، د پیښې مخنیوی ئې وکی. باردو وئې له مرګه بچ کړه او ځای ئې چې د خپل لومړی ئې میړه

(رو ژه وادیم) په یوه فلم کې مهم رول لوبولی. د باردو د انتحار پیښه یو المانی خبریال داسې څرګندوی:

بریژیت باردو د یو کال راهیسې خوا، د یوه المانی ښکلي ځوان (کرلیتان کالت) سره ډېر منږ دي رابطه لری او حتی خپل زیات وخت یو د هغه سره تېراوه.

یوه شپه په داسې حال کې چې باردو د کرلیتان څخه د واده غوښتنه کوی تر څو د هغه سره رسماً واده وکړي خو کرلیتان ځینې مشکلات او پرابلمونه منځ ته راوړل او د دغه غوښتنې څخه ئې ځان وژغوره. له دې امله د باردو عصبانیت خپل اوج ته ورسیږی او ځودانې د خوب ګولۍ ئې وخوړې او د لاس پوښړیان هم ئې پرې کول.

څو په دغه توګه خپله بدمرغي ښه تر او اضح کړي. خو کله چې لیتان د موضوع څخه د یوه تصادف په اساس خبریږي، سمدستي د هغې سره مرسته کوی او هغه د مرګه بچوی.

تر دغه پېښې وروسته کله چې د باردو حالت پرمخ ښه سو، نو خبریالانو په دې هکله د کرلیتان څخه ځینې پوښتنې وکړې چې د هغه موضوع د باردو د واده په باب وه.

کرلیتان په څرګند ډول وویل چې هیڅ کله په د باردو سره واده ونه کړی او باردو هم په دغه برخه کې بیله‌دې چې د واده د موضوع سره تماس ونیسی داسې وویل:

تر خپل احمقانه تصمیم وروسته و پوهیدم چې ژوند څومره ښکلی دی او نه ښایی هغه ورډیا له لاسه ورکړو.

## څو په زړه پورې پوښتنې

ګرانو ځوانانو لاندې ئې څو پوښتنې په غور وګوری او هغه ته جواب ورکړی که چېری د پوښتنو جواب ئې مو منفی وی، نو په دې پوه سی چې تاسی ځوانی، تاریخ او وجدان ته مسئولیت هغه پوښتنې دادی:

- آیا اجتماعی ګټې پر شخصی ګټو غوره نه ګڼې؟
- آیا د مسئولیت حس په تاسې کې سته؟
- آیا تعلیم ته تر ټولو ګوبوټو زیات وخت ځای کې که نه؟
- آیا د ځوانی د غړو سره ښه رویه لری؟
- آیا د ژوند اداره په لار کې کوم پلان او نقشه لری؟
- آیا د ظلم او خیانت څخه په امان یاست؟
- آیا د وطن د آبادی او پرمختګ په لار کې موتر او سه کوم د قدر وړ کار تر سره کړی دی.
- آیا د خپلی ځوانی سره مینه او محبت لری؟
- آیا د خلکو په غم او ښادی ځان شریکوی؟

که چېری پورته خواص په تاسو کې موجود نه وی نو له همدې شیبې څخه هڅه وکړی چې ځان اصلاح کړی او د یوه حقیقی ځوان په صفت ځانونه متصف کړی.



تهیه کوونکې: پېغله سکینه نورزۍ

# صحت او روغتیا په سمه غذا پورې اړه لري

د ډوډۍ په خوړلو کښې مراعات کول د جوړتیا د ساتنې په غرض یو لازمي امر دی ځکه چې ژوند د ډوډۍ د پاره نه دی، بلکه ډوډۍ د ژوند او صحت د پاره ده ډوډۍ که هر څو نه خوندوره وي باید په دو نه اندازه

وخوړل سي چې لوږه په لیري سي د ډېرې ډوډۍ خوړل معدې ته درونوالی (ثقلت) او د هضم عمل ته سختوالی پېښوي چې د کار د روغتیا په تاوان تمامیږي

انسان کله چې د مړېدو احساس وکړي نو په هغه ګړۍ باید د ډوډۍ څخه لاس ونیسي او تر اشتها بالا یې و نه خوري.

د ډوډۍ تر مخه او وروسته ځان په یو کار اخته کړی او د حرکت په حال کښې اوسي. بېکاره او کېناله خلک تل اشتها نه لري ډوډۍ ښه نسي هضمولای.

غذا عبارت ده د غوښې، ډوډۍ، غوړي، هګۍ لبنیاتو، نباتاتو، سبزیجاتو او میوې څخه چې د دغو شیانو په خوړلو کښې پوره پاملرنه په کار ده او هم

باید دومره په غذا کې بدلون راوستل سي چې د بدن ضروري مواد ورته برابر کړه سي.

تل هڅه وکړئ چې شومانده غذا، ناپاکه خواړه او مېوه، زیاته شیریني، تروه او تند تیز شیان

ونه خورئ د نوري ډوډۍ نه خوړل لازمي دي ځکه چې توده ډوډۍ غاښونه او معده خرابوي. اشپزخانه او

هغه لوښي چې ډوډۍ پکښې اچول کیږي، باید نهایت پاک او ستره وي. هغه لوښي چې د مسو او ژېړو وي، خواږه او تروه خواړه مه پکښې پخوی له دې کبله چې

د دوی په ترکیب کښې حتماً سرب موجود دی چې تروه او خوږه ماده هغه په ځان کې حلوي او په یو ډول زهرناکه ماده اوړي. هغه څوک چې دغه ډول خواړه وخوري د زهرو اثر ئې بدن ته سرایت کوي او

که (خدای ناخواسته) کم وخت داسې پېښه سي سمدستي باید تودې اوبه وڅښي که فرضاً شیدې نه وي غوړي یې

د تودو اوبو سره ګډ کړي او وئې څښي دا هم باید و وایم چې د دغه مسمومیت د پاره استفراق کول ډېر ښه دي.

## د مځکې حرکت

د بوچا په مغز کی چې ډېر شراب ئې څښل، ګالیله یاد سو چې د مځکې حرکت ئې ثابت کړی دی او په دې

لاره کښې ئې ډېر ربړونه ګاللي دي او دا ئې په ثبوت رسولې ده چې مځکه ښوري.

شرابي وویل: دو نه تکلیفو ته څه حاجت ؤ یو بوتل شراب د مځکې د ښورېدو د اثبات له پاره کفایت کوي.

# ددې ګڼې معما

| ۷ | ٦ | ٥ | ٤ | ٣ | ٢ | ١ | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| | ل | ک | س | ي | ا | ب | ١ |
| | ٠ | ل | ی | و | | م | ٢ |
| ل | و | ي | | | | ی | ٣ |
| ر | و | | د | م | ح | ا | ٤ |
| م | | | ي | و | ا | ن | ٥ |
| | ن | | م | ر | ل | | ٦ |
| ه | ک | م | ا | | م | ا | ٧ |

افقي: ١ادعرادهجاتو لهجملې څخه دی. ٢څه ـ د (انګلیسی) .

٣: معکوس ئې دکوچنی ضد ٤ ـ داسما ؤ لهجملې څخه دی، د دواز ه

٥ ـ هغه څخه چې ودبېږی ٦ ـ کهسره مرتبهسی دحرارتلو به منبع څخه

جوړه یږی ٧ ـ مور (عربی)، آرزوګانی . عمودی:

١ ـ دافغانستان دولایتو څخهدی .

٢ ـ کهسره مرتبسرو ړ ونکی او معکوس ئې حلم کوونکی .

٣ ـ داعدادو لهجملې څخه دی، معکوس ئې دادو پاټی معما لکو څخهد

یوه مملکت مرکزاو دا ستهیوچ براژدیدوست .

٤ ـ کهپه آخره کی (ل) ورزیاته سی نوخر ځلاو (انګلیسی) که ئې

لمړی توری حذف سی د افغانستان پاچا دی .

٥ ـ تربهار کوچنی دی ـ ٦ ـ ددر لول .

# کوچنی نابغه

ایرلندی همیلټن (١٨٠٥ ـ ١٨٦٥) په پنځه کلنی کی لاتینی، عبری او یونانی ژبی او په اته کلنی کی فرانسوی او ایټالوی او په لس کلنی کی عربی او سانسکریت ژبی زده کړی. په ١٤ کلنی کی ئې ددبلن په ښار کی څو تنو دریو بوته په دریو به بیانیه ورکړه او په ١٧ کلنی کی د انتګرال په حساب خورا ښه پوهیدی، دخسوف او کسوف اشکال ئې کاوه او په ٢٢ کلنی کی دنجوم استاد سو .

## راستی

په خبروکی راستی اختیار کړه او ددروغو څخه ځان ګوښه کړه چې دغه ښه اخلاق او ښه آداب دی .

رښتین نوب انسان در ستګاری تخت ته رسوی او دروغجن دخواری په لوری بیایی .

ددین اساس او پایه راستی او درستی ده .



# ذهنی ازموینه

ګرانو لوستونکولاندی عکس په غورډ وګوری او که مو وپیژندی نو د هغه سوانح دمجلی ادارې ته دخپل عکس سره داو لیږی څوستاسی په نامه ئې چاپ کړو .

دونه بایدوو ایو چې دغه شخص دپښتو خوږژبی شاعردی او دکندهار د کرز په سیمه کی هستیدی .



# دنوکر خوب

یونوکر خپل بادار ته وویل . پیګاهی خوب لیدی چې ته ټول په شاتو ککړ ئې او زه په چقلیو ککړ یم بادار ئې ورته وویل تعجب مه کوه څکه چې ته ګناه کار ئې او زه ښه سړی او جنتی یم نه دوږخی .

نوکر وویل: اجازه را کړه چې خوب می پوره کړم بادار ووایه .

نوکر ګوره چې زه تا څټم او ته ما .

د ښاغلي یوال په قلم :

د ولسوالیو پېژندنه:

# د دې ولسوالۍ چې د کندهار زیاتره تاریخي بناوې پکښې او د دغه ولایت یوه سمسوره زراعتي سیمه ده

## د دې ولسوالۍ :

د کندهار د ولایت په تشکیل کښې د دغه ولسوالۍ د نفوس او موقعیت له لحاظه یو ه پراخه او لومړۍ درجه ولسوالۍ ده چې یو شمېر تاریخي آثار پکښې دي او زیاتره حاصلات ئې انګور دي او د کندهار اقتصاد پرې پیاوړی دی .



ترچهل لاندې د اشوکا تاریخي کتیبه

دغه ولسوالۍ ښار ته نژدې ده او په ځینو ځایونو کښې د ښار ځینې برخې هم پورې تړلې دي . مرکز ئې د کندهار د ښار د لوېدیځ په پنځه کیلو مترۍ کې دی .

د دې علاقه د ارغنداو، پنجوایی، سپین بولدک، ارغستان او شاولی کوټ د ولسوالیو په منځ کښې پرته او د دامان په نامه یوه علاقه داری هم لري .

## نفوس او مهم کلي ئې :

په دغه ولسوالۍ کې څه د پاسه پنځوس زره تنه اوسي او زیاتره او سیدونکي ئې په قوم پوپلزي، بارکزي، الکوزي او داسې نور دي .

د دې مهم کلي دا دي: کرز بالا کرز، کلچ آباد، شېر سرخ، ناصران، سبز بکار، ذاکر، بلندي، مرت کلا، دوح آباد، خواجه علي، ده غلامان، روانی، ده خقي، چپلاني، ګورګان، ناکو دک، ده باغ، دمباسي، انګوریان، تیمور یان کاریزک، ګوشخانه، میربازار، صوف، کوبي او نور .

## کرنه او فلاحت :

د دې زیاتره کلي چې د کندهار د ښار په جنوب کې پراته دي خوشکاوه ئې بولي او [ ]په سلو کښې



د شېر سرخ زیارت

یا مځکې ئې د انګورو باغونه دي او په هغو کښې
و له انګورو څخه چې مهم ئې شنډوخاني، ګرد کې
، سره کشمش، سپین کشمش، لعل، روچه، صاحبي،
کري، خلیلي، قندهاري، خیرغلامان، او حسیني
.

د دامان غنم او خټکي ئې ډېر ښه او زیات شهرت لري.

## تاریخي سیمې او شخصیتونه:

د پنجوایي ولسوالي کې د کندهار زوړ ښار چې د میرویس نیکه او نورو هوتکي باچهانو د سلطنت مرکز و، شیرسرخ



د پنجوایي ولسوالي د کرزیو انګوري باغ

در آباد) چې په هغه کې د لوي احمدشاه بابا
ج پوشۍ مراسم ترسره شوي دي، چهل زینه چې د
لي باچا ظهیرالدین بابر پوه څرګندوونکي تاریخي بناده،



د پنجوایي په سیمه کې د میرویس خان مقبره

د هینو مقبره او کاریز چې د کندهار د ختیځ په لس کیلومترۍ کې پروت دی د دامان د ولسوالۍ مربوط دی، میرمن هینو د لوي احمدشاه بابا د عصر د ښکیلو وطندوستو او سخیانو ښځو څخه وه.

مرحوم کندهاري مهردل خان نایب سالار چې کندهار ئې د سقاوي د باندو څخه وژغوره په قوم بارکزی او د دغې ولسوالي د دوح آباد د کلي دی او مقبره ئې هم هورې ده.

## د خلکو کالي:

ځوانان ئې عموماً افغاني کمیس او لوی پرتوګ اغوندي، لنګوټې تړي ټوپۍ پر اوږدو کوي د غټو چوټو سره خاص نماي او ښکلا لري.
ښځې ئې عموماً تور کمیس او سپین پرتوګ اغوندي او پوړني ئې هم د تور رنګ کره وي.
خلک ئې قول د ښندار ده او زباره ئې د جمعې د لمانځه د پاره ښار ته راځي، په عنعناتو پابندي لري او په خپل کلتور د وياړي.



د کندهار د ذاکر ښار او نارنج د قصر کنډوالي
شو کا کتیبه چې د ګربکټ و بود یکټ ومهم اثر دی
او د محمدزو د سلسلې د پلار حاجي جمال نیکه
زت د ذاکر په کلي کې دي.



د غیزنو په کاریز کښې د هیوادنو مقبره

## مهم شاعران ئې:

د دغې ولسوالۍ مهم شاعران چې اوس مړه او ډېر شهرت لري میرزا احسان بارکزی د مرت کلا، شمس الدین کاکړ د کلچ آباد، ملا عبدالله اوزوی ئې رحمت الله بابا پوپلزی د پلدی، ملا عبدالسلام پوپلزی د کرز او ملا حسن اخوند د توانکان دی.



په تلوکان کښې د ملا حسن اخند مقبره

## روحانی شخصیتونه ئې:

د مناری میا صاحب چې په میا نور محمد سره شهرت لری او په خټه نورزی او د مناری په کلی کې دی، د خونیه په سیمه کې کې پوری نه نژدې د بوه سترستانه ابراهیم خلیفه بابا زیارت

دی په ذاکر شریف کې د میا عبدالحمید صاحب او اولادې مقبره ده چې په قوم هوتک او سترستانه او ولی ژاو د حاجی موریز نیکه او اولادې مقبره چې پخته پوپلزی او د لوی او لیاو خښه دی سته

او په میر بازار کې د ملا محمد جان نورزی زیارت دی.



د میا نور محمد صاحب مناره

## صنایعی ښکاروی:

د ترنک د پله پر غاړه د پوستکی او کولمو یا کولو دوی فابریکی جوړې شوې دی.

## لاسی کارونه:

کندهاری خولیانی او رخچینی ګاموکی او ګلابتون دوزی ګنډونه د دغې سیمې د ښځو د لاسی چارو څخه دی.

د کندهار د کلالی چاری د ټول په دغه خټې کې پر مخ درومی او په دغه سیمه کې ۲۰ د ښځو او ۲۰ د نارو د لوښو پخولو کوری سته.

د ټول په سرخته، امبار او نور سیمو کې د ښری څخه د کاله په ډول قالینی او ګلیمی اوبدل کیږی.

## واده او نور دودونه:

نجونې او هلکان د ۱۶ او ۲۵ کلو تر منځ واده کوی، د پښتو او اردو شیانو زدو افغانیو څخه تر ۲۰ زرو افغانیو پوری دی او د واده نور لګښت هم زیات دی. «پاته په ۲۷ مخ کې»

برېښنا بخرګي :

# محمد انور ایازي

هغه وخت چې په افغانستان
ی د افغانستان د ښمنانو د
تجاعي انقلاب یعنې سقاوي
م پاشې او مګر د اخلې

ود وخته شروع شوي
(۱۳۰۰) په دې وخت کې د
ندهار په یوه کوڅه کښې د
مد علم ایازي د کوره څخه د
مد انور ایازي دژ پیدا ئی
ري وسو .

محمد انور ایازي خپله د
و لیت دوره د دغه انقلاب په
ږ کې تیره کړه . د زمانې
دې او سپي ي ترو لیدي .
رنګه چې په کندهار کې د
ازي کورنی د علم او معرفت
ره چیره مینه در لوده او
م ئی لری نو محمد انور ایازي
میواد د آینده تعمیر د باره په
کتب کې شامل کړه سو . او د
ل پلار مرحوم محمد علم ایازي په
ستنه په ښه پروښو نمرو تر شپږمې
لګی پورې د شاملار په
مکتب کې تحصیل ته دوام ورکي
۱۳۱۷ کال کې د پیلوټي د
ره و اکل سو خو کوم وخت چې
ابل ته ورسیدی د هغه وخت
د الئ قو ماندان د کابل نفر
کندها ر یا نو په عوض کې
سقول . تر هغه و رو ستنه
اغلي محمد انور ایازي د
ابل په دار المعلمین کې

شامل او په ۱۳۲۱ کې فارغ سو او په
کابل کې د استقلال په لیسه کې د
ښوونکي په حیث و ټاکل سو و روستنه
تر هغه د کندهار ته را تبدیل او په
۱۳۲۳ کې ئې د احمد شاه بابا په
لیسه کې د ښوونکي په حیث په خدمت
پیل وکې .

څرنګه چې دی د خپل ټاټوبي سره
مفرطه علاقه لري نو د وظیفې په حیث د
۱۳۲۳ څخه بیا تر ننه پورې په هم دغه
کندهار کې پاته دی .



**محمد انور ایازي**

د کندهار په علم او معرفت کې
ددوی برخه نه هیریدونکې ده ،
په دا (۲۷) کالو کې چې دوی تر اوسه
په کندهار کې د ښوونکي په حیث خدمت
کړی دی ، تقریباً ددوی په لار ښوونه
(۲۷) دوري فارغان جامعې ته وړاندې
شوي دي ، نو ځکه د کندهار معارف
ددوی په شخصیت ویاړي .

صداقت او وظیفه پیژندنه چې ددوی
ذاتي خاصه ده په ده کې
ښکاره معلومیږي . هغه کسان
چې ددوی سره د وظیفې په حیث
په تماس کې دي د دې خبرو
تصدیق کوي .

په پښتو له کوم اجتماعي
دردچې له حسانه سره لري
بیخي چیر دی . دوی که په خوله
څه نه وائي خو په زړه کې د ټولنې
درد ورسره ملګري دي . ددوی په
وژین تندی کې د صبر او تحمل
چیر قدرت موجود دی په
اجتماعي او سیاسي لحاظ
معتدل دی .

څرنګه چې د خپل ژوند د
وطن و معنوي خدمت ته وقف
کړی دی .

نو هیله لري چې په ټولنه کې
علم او عرفان تعمیم او انکشاف
ومومي له دې امله ئې د معلمی
مقدسه وظیفه اختیار کړې
ده .

نوري وظیفې ئې چې تر ننه
ورځې پورې اجرا کړي دي په
لاندې ډول دي .

په ۱۳۲۵ کال کې ئې په
میرویس بابا لیسه کې د ښوونکي
په حیث وظیفه اجرا کوله .

په ۱۳۲۷ کال هغه وخت
چې او سنۍ مشرقي لیسه ابتدائیه
وه د سر ښوونکي په حیث مقرر سو

(پاته په ۲۸ مخ کې)

ژوبك

## زه لوی یم؟

هلته چې ستا د مینې او محبت
لمر ماډبوی و ډ انګی په شان
لې زولای سی او ستا خاطره

زما د سوچ جهان په خپل توان سره،
تر خپل توان او تسلط لاندې
د او ستلای سی.

په داسې حال کې تا نه و ډه
او ځان ته لوی ووایم؟
په! ببا هم په!

زه لوی نه یم او نه وړه نه یې،
ځکه په هغه جهان کې چې عزت
غوښتنه ـ ی نور تر ګسې انګو

وغور ځول او هلته چې دولت
په نور و هر ه مینه او محبت هېر کې،
هلته چې خوا ښه ډېرو او تر څه

هم ډېر ، خوزه نه خوښو د مینې
تر سرحد تېر کړم او نه هم د ترخو
بېرې وړ او لم. صرف بوازی

ســـتا وړ ی کـــتنی هغه
ځای ته ورسو لم، کوم چې ځان ته
او خپلې هستې ته په واړه منظر

وګورم په د غسې توان او په دو ،
طاقت بیا هم ځان ته لوی او تا ته
وړ ه ووایم.

اصلاً نه!

ته لویې، د ا ځکه چې زما هستي
ستا هستي ته ډېره وړه وا ،سیدله
زه تا وړ ه نه بو لم او ځان نه هم
لوی نسم و یلای.

د هغې ور ځې نه چې ته
وزبې یدی، هغه ګړ ی چې تا د

(پاته په ۳۱ مخ کې)

د (۲۶مخ) پاته

## د ډېند ولسوالی ...

دوا ده په ورځ د ژوم دعلاقه لرونکو
له خواد تو پك او تو پنګچې ډزی هم
کېږی او په دې ډول دوستان ژوم او
ناوی ته خپل صمیمیت څرګندوی.
د مړی د فاتحې په مراسمو کې هم
ډېر خر څونه کوی او حتی په پورپیسی
اخلي او خلکو ته ډوډی ور کوی.
د مهمو عصري ودانیو څخه ئي په
کوکران کې د غنمو سیلو او بل
بین المللی هوائی میدان د ډېند په
جوړ اندام کښې دي.



د کوکران په سیمه د سیلو ودانۍ

**په ډېند کې معارف:**

د ډېند دولسوالۍ د کرز په سیمه کې
د حاجی جمال نیکه لیسه، د فاضل
کندهاری یوه منځنی ښوونځی
څپږ ابتـــدائی ښوونځی
د پارلس د هلکانو کلیوالی
ښوونځی او یوه د نجونو کیلوالی
ښوونځی لری چې د زده کوونکو
شمیر ئی (۳۰۰۰) تنو ته رسیږی.

د ۲۷ مخ پاته

## محمدانور ...

او هم د ا رنګه په ۱۳۳۸ کال
د تحصیل په غرض بو کال بیروت
ولاړ ی.

کوم وخت چې په ۱۳٤۲ کال
مشرقی ابتدائیه ښوونځی
د متوسطی په حیث ارتقا و موند
د همدې ښوونځی د مرستیال
حیث مقرر سو. او په ۱۳٤۸ کال
چې د مشرقی متوسطی لیسی ته ارتقا
وکړه د نو موړ ی لیسی د مدیر
په حیث مقرر سو.

او هم سر بیره پر مقصد دو تحصیل
لیکو نو او د بخششی معاش
اخستلو چې د ماموریت په دوران
کې ئی په برخه سوی دي د بو هنې
د مډال او د مډ د ښتین مډال
په اخستلو موفق سوی دی.

# د کندهار خاصې لوبې

دا منلې خبره ده چې د نړۍ په هر هېواد کښې د خلکانو لپاره یو ډول لوبې سته چې البته د هغه ځای وګړي د خپلو عنعناتو په مطابق لوبې کوي خو په پرمخ تللي هېوادو کې د لوبو ډولونه وروورو ډېرشوي دي.

زموږ د ګران هېواد په بېلو بېلو برخو کښې هم ډول ډول لوبې کېږي ځکه چې زما مطلب یوازې د کندهار د خلکانو لوبې دي نو غواړم چې پر هغه باندې څه رڼا واچوم.

په کندهار کښې اکثره خلکان د کال په هر موسم کې ځانته بېلې بېلې ځینې لوبې او مشغولیتونه لري چې خپل وخت په هغه باندې تېروي.

موږ وینو چې د ژمي په اوږدو سړو اوږدو پسرلي په لومړیو ورځو کې ډېر خلکان د کاغذبادو او پانوسانو په جوړولو او الوزولو لوځانونه اخته کوي دا خلکان لومړی خشکي سرېښ او باڼس برابروي او وروسته بیا هغو په جوړولو پیل کوي کله چې کاغذبادونه او پانوسان جوړ شي بیانو د هغو د الوزولو لپاره یو ډول مخصوص تار چې په سرېښي مانجې په نامه شهرت لري، تیاروي.

## د کاغذبادو الوزول.

کاغذبادونه په عمومي ډول د سهار او مازیګر په خوا الوزول کېږي خو ځینې خلکان ئې د غرمې په وخت کې هم چې حرارت خورا ډېر وي الوزوي. د دوی د الوزولو ځای د خپل کور او د ګاونډیانو د کور د ونو بامونه وي پر دغو بامونو باندې تر هغه وخته پورې په حرکت او ځغستا وي تر څو چې د دوی کاغذباد الوزي. خو کله کله د ډېرې ځغاستې تګ او راتګ په اثر د بام د پاسه را لوېږي چې په نتیجه کښې سخت ټپي کېږي او یا مري. ځینې خلکان چې بیاد کاغذباد د مانجې او نورو شیانو د برابرولو توان نه لري هغوی د نورو خلکانو د کاغذبادو د نیولو لپاره چمتو کوي او د هغوی کاغذ بادته کماني اچوي او د هغه تار را کښته کوي چې دا کار هم د جنګ او جنجال زمینه مساعده کوي او هم د ګاونډیانو د اذیت موجب ګرزي.

خو پانوس تل د شپې له خوا په داسې حال کښې چې شمع هم پکښې لګېږي، د کاغذباد د تار په واسطه هوا ته پورته کوي کله کله دا پانوس په هوا کې اور اخلي او د کاغذباد سره یو ځای له منځه ځي او کله کله ئې اور کښته لوېږي او ځینې خسارې پېښوي. خو ځکه چې په ټول ښار کې د برېښنا هوائي لینونه کش شوي دي نو ډېر وخت د کاغذباد او کماني تارونه او ډېرې په هغو کې بندېږي او د برېښنا د شارټي موجب ګرزي.

## د چېچیانو نیول:

په کندهار کښې یو ډول کوچنۍ خړ رنګه مرغان سته چې په چوغکو سره مسمی دي. دا چوغکی د پسرلي په ورځو کښې د کورونو د شاوخوا په دېوالو کښې ځانو ته غارونه پیدا کوي او د ځالې تر برابرولو وروسته هلته هګۍ اچوي چې په څو ورځو کې بیا چېچیان کېږي دا چېچیان چې څه قدري غټ شي نو د مور او پلار په ورتګ سره یو ډول آوازونه پورته کوي. په دغه وخت کې خلکان پوهېږي چې د دغه د چوغکي چېچیان سته بیانو د هغو د رااېستلو لپاره یو ترتیب نیسي او د غرمې له خوا په داسې حال کې چې د کور څښتنان بیده وي د چېچیانو په کښلو پیل کوي او په هره وسیله چې وي هغه ورلاسته راولي حتی د دېوال په سوري کولو او د دېوال د یوې برخې په نړولو هم صرفه نه کوي چې البته دا کار د کور د څاوندانو په نقص او تاوان تمامېږي. وروسته چېچیان سره وېشي او بیا د هغو د اموخته کولو لپاره ورځ په ورځ زحمت ګالي خو تر څو ورځو وروسته چې چېچي په غټ شي نو د خپل څښتن څخه نښتي او بیانه ورته راځي او بیادا چې د اموخته

کولو په ور ځو کښې د پېښې نه خو له شي . نو د دغه کار مخنیوی د والدینو وظیفه ده .

## رېبل ان :

د پسرلي په ورځو کښې علاوه پر دغه چې هلکان د کاغذ باد په الوزولو او د چیچیانو په کښلو او دوز لو اخته وي بوز یات شمیر هلکان د ربې انو په استعمال هم مصروف دي . د ربې د موټر با بایسکل د ټایر ه ټوټې څخه

جوړ وي او هغه د لرګي په یوه دوښاخه او د څرمنې په یوه ساخت پوري غوټه کوي ، ربې د مرغانو د ویشتلو لپاره په کار اچوي او هغه مرغان چې په دې ختو ، دبو او

او باد بر بنښا پر مزونا ست وي په هغه ډېره سره چې په ربې کښې تعبیه شوي وي ولي . دا ډېری زیاتره په کورو کښې هغلې چې د ظروفو ، هند ار و حتی د خلکو د سر و د م تید و سبب ګرځي . د ربې څخه نان کله کله د خپل تمرن او

د ښکار د ذوق کي ی لپاره ، د بریښنا د مزي سپیني کنجیانې او یادا و بو هغه کنجیانې چې مېر منو د او بو د یخولو د پاره پر تیغو ایښې ولې ټې چې دا کار هم د خلکو د آزار سبب ګرځي

## تلکه :

د پسرلي د موسم د راتګ سره سم علاوه پر اصلي مرغانو نو د خو دا ډېر لری او کوچني کوچني مرغان هم راځي . دا مرغان په خو د انشراط او خو شحالي سره

ددې ځای په باغو ، د ښتو او کروندو کې شپې او ورځې تیر وي تر څو د پسرلي او وړی میاشتي تیرېږ ی په دې مرغانو کی ځيني خو راښا یسته دي او ځيني

بیازه ږه ورونکي ږ غونه لري او د خلکو نظر جلبوي .

. امرغ ان چې د پسرلي د قیمتي سوغاتو نو څخه دي

له بده مرغه یو ه برخه ئې د هلکانو له خو ا مجو ه کیږ ی یعني هغوی په ډول ډول چمو سره نیسي او چیچیا ن ئې نه ځا ایو څخه د اکازي چې په پای کی مر ی

او ژوندئی خاتمه مومي . هغه اسباب او وسایل چې د مرغانو د نیو لو لپاره په کار لوېږ ي دا دي : لو مکه ، ګز که ، تور ، ډېر ی ، ربې او تلکه . دا شیان هر یو ځانته بیل جوړ ښت او شکل لري او که چیر ی د هر یوه په برخه کی معلو مات وړ اندې شي ډېر وخت او زیات ځای

په بر کی نیسي خو د ونه بایدووا . و چې تلکه زیات مروجه ده او ددې آزار مخنیوی هم د و الدینو وظیفه د

## ېیجلی :

ېیجلی په اصل کی هغو کی دی چې د پسو ، وزو ا هو سي د پښو د بندونو څخه لاسته راځي . په طبیعي ډو بو منظم شکل او څلور خو اوې لري . دا هغو ک

چې په ېیجلو سره مسمی دي ، د کندهار د هلکانو د باز یوا ساعت تیر ی وسایل دي او په هغو سره ډول ډول لوبې لکه شکه شکه ، دو ګي ، در ېپلي ، خټا پسکه ، ا یر ټي ټپ ، او نور ی لو بې کوي . ېیجلی کله کله د ساتیر ی پ

ډول استعمالوو ی خو اکثره وخت ئې د ګټلو او بایللو ب تر ګه کوي . د غه لو بې کوونکي عموماً په عامو لار کو څو او خاو دو کی ناست وي او وختونه په د غ

بیکاره او ناوړه لو بو تیره وي چې په نتیجه کی ددوی لاسونه ، مخو نه ، کالي او نور بدن په خاو رو لړ لی ا چټل و ی او د الو بې بالاخره ددو ی د جنجال سبب ګرځي .

## مردکی :

ددې ځان د هلکانو د ناوړه لو بو څخه یو هم مردکی د مردکی عموماً د ډېر و . ښیښو ، او سپنې او ګلبټ څخ جوړ شوي وي خو به عمومي ډول ښیښې مردکی ډېر ی استعمالیږي . په مردکو سره هم ډول ډول لو بې

کیږ ی د مردکو د لوبو ځا یونه هم لاري او کو څې دي او دغه لو بې کوونکي و ځې وځې په کو څو کی اخته او یو له بله د ګټلو او بایللو په څه و ی . دا سې ډ پېښېږ ی چې زور ور کمزوري تر بایللو وروسته خپلې

مرد کی د مقابل طرف څخه بیرته په زوره اخلي او په دې تو ګه ددوی په منځ کی جنجال پیښیږ ی چې وروسته په ښکنځلو حتی په وهلو او کو ټلو بدلیږ ی

## ارغړی :

پخوا ځینو هلکانو یو ډول د ربې ی ارغړی په لغړولي او ددې د پاره چې د غه ارغړی په غځلو او په وخت کی آواز پورته کړ ی نو په هغه پوري به ئې ډېر ی ژ نګولي ځو ولي وي ، . او س د هغه ځای دا و سپنې ارغړي یو نیو لی دا ارغړی د یوه مخصوص سیخ په و اسط

(نور بیا)

د(۵مخ پاته)

# دیو گندورو ستیو...

دغو مهاجرینو دمنلوسره
لاقه نه ده ښکاره کړی، خو
یر امکان سته چی دځای د نه
دا کیدو او د انگلستان د

کومت په جدی غوښتنه سره
ه قول او یاددوی یوشمیر کسان
بول کی.

سره ددی چی ایدی امین
بو گندا څخه دغیر افریقائیانو
و تلو په باب په خپل سیاست کی

بو اره دا خبره تکرار کړی ده
دغه فیصله ئی دا سی بللی ده
ی هیڅ تغیر به پکښی رانه سی.

و بیا هم دانگلستان حکومت
ینکار کوی چی دغه دری میاشتی
خت د مهاجرینو دوتلو دپاره

کافی نه دی او د سږ کال تر پایه
ردی باید اموده و غځول سی
رهم یی تصمیم نیولی دی که

یدی امین دانگلستان غوښتنه
نه منی خپل اقتصادی مرستی
ه په بوگندا باندی بندی کړی

همدې مقصد دپاره دانگلستان
کومت د دغه هیواد یو عالی
تبه نماینده چی (جیفری رپین)

ومیږی په ددی ورو ستیو ختو کی
کمپالا ته استولی دی.

خو ایدی امین د زیات
صروفیت په سبب دده سره

د ممدستی کتلو دپاره حاضر نه سو
او رپین هم بیله دی څخه چی دایدی امین
سره وگوری ناپر و بی ته ولاړ، او ده ته

یی دانگلستان د حکومت دنظر یاتو
په باب یو مکتوب تسلیم کړ. ښایی
دایدی امین د اوسنی سیاست په باب

یو شمیر امکانات موجود وی، خو څکه
ده په څر گنده ول ویلی چی دده دژوند
په قیمت به هم د دغه فیصلی څخه وانه وړی.

او دانگلستان د حکومت په مرستو
به چی د کاله څلور ملیونه سټرلنگ
پونډه کیږی باك و نه کړی. گمان

نه کیږی چی دانگلستان دحکومت
د کوښښونو څخه غوښتل شوی نتیجه
تر لاسه سی غیر له دې څخه چی د دغو

مهاجرینو دپاره ځای پیدا کی بله چاره
موجوده نه ده (پای).

د(۳مخ پاته)

# جاپان ته د غازی..

د غه لومړی تاریخی سفر او اولین
تماس دی چی ددوو لویو هیوادو یعنی
افغانستان او جاپان دقهرمانانو ترمنځ
په ۱۹۰۷ کال کی په جاپان کی سویدی

او د افغانستان د تاریخ په صفحو کی
نه دی ذکر سوی نو ومی غوښتل چی دغه
تاریخی موضوع د هیواد او لوستونکو ته
ور سوم:

# پښی خبری

دری شیان ډیر سخت دی
فولاد، الماس او ځان پیژندنه.
(فرانکلین)

هر ستر اقدام لومړی محال
ښکاری.
(توماس کارلایل)

د۳۸مخ پاته

# زه لوی...

نه ی په شمیر کی یو زیاتوب
راوستی او هغه وخت چی ته زما
د هستی د وړو کوالی مقدمه

سوی، ما ځان ته وړه و وایه-
زه وړه یم، زه لوی نه یم،
زه ستا دهستی په مقابل کی ځان

وړه بولم. هر وخت او هره
گړی ه . . . ی زما دهستی دوړو کوالی
لو یی موجبی!

دادی زما اعتراف او دادی
یو ښکاره حقیقت . ای زما
د یوی هستی د تزلزل باعثی!

گرانی زرغونی!

یوه بله موضوع چی د یادونی
وړ ده هغه دا ده چی سردار
محمد ایوب خان دژوند تر آخره

یوری خپل هیواد ډیر ډیر یاداوه
او ده دا سی وصیت کړی و: کله
چی زه مړ شم نو ما دافغانستان

یا پښتونستان په خاوره کی ښخ کی
نو دده د غه وصیت دده کورنی

یو ځای کی او دی ئی به پیښور
کی ښخ کی (پای).

(۴۱مخ)

د(۸مخ پاتې)

# دهیواد نامتو فولکلوریست...

نور ډېر لوا عضاوو په بورتيو او معاش كار كاوه وروسته تر څو كلونو د ادبي انجمن نوم د پښتو ټولنې په نامه واوښت او زه څه عمر د عضوي په حيث پيا د تاليف

او ترجمې په مديريت او په وروسته كې د لغاتو او محلي ژبو د شعبې د آمر په صفت مقرر سوم تر څه كار كولو وروسته مې ښځه او زامن مړه سول چې زما د غوښتنې

په اثر د پښتو ټولنې د لغاتو او محلي ژبو د مديريت څخه د كندهار په دولتي مطبعه كې په حفظ د رتبې چې څلرمه رتبه وم د مامور په حيث مقرر سوم. د تقاعد تر وخته

پورې چې ټوله د برش كاله كيږي خو د تقاعد هغه حق لا هم نه دی را كړه سوی.

نوموړي خپلې خبرې نورې لا هم داسې سره پرله پسې كړې:

څو موده مې په كابل كې د عالي كورس وشاگردانو ته درس وركاوه، همدا ډول مې د كابل راډيو په بيلو بيلو نشراتي پروگرامو كې ډېر ډېر بالو گونه

او ډرامې تمثيل كړې بدې خو باته دي نه وي چې په هيواد كې تر ما د مخه هيچا نه په پښتو او نه په دري ژبه كوم ډرام او يا ډيالوگ تمثيل كړې بدي.

زما لومړنی ډرام چې د لومړي ځل لپاره د لويو حضراتو په وړاندې په حضوري چمن كې د مطبوعاتو د مستقل رياست په كلوپ كې تمثيل كړ «د بازاري وادة د صحرائي ښځې» تر عنوان لاندې ؤ چې د لويو حضراتو د توجه وړ وگرځيد.

لنډه ئې دا چې تر تقاعد وروسته د كندهار د اطلاعاتو او كلتور د لوی مدير ښاغلي غلام محي الدين ابوبي په

توجه د كندهار د اطلاعاتو او كلتور په مديريت كې د (۱۱) رتبې اجير كاتب په حيث مقرر او وروسته تر دوو كالو د كندهار د دولتي مطبعې په مديريت كې د آرشيف د څانگې په لسمه رتبه پست كې د اجير كاتب

په حيث مقرر سوم چې تر اوسه پورې په همدغه ځای كې كار كوم.

ښاغلي محمد گل نوري د خپل هغه پروگرام په باب چې د فولكلوريكو څېړنو لپاره ئې درلود داسې وويل:

د فولكلوريك او فولكلورو آثارو د ټولولو خوښي… دوډو كوالي راسره ؤ په غير رسمي ډول مې څينې لنډۍ… متلونه او لغاتونه ټول لول خو د ادبي انجمن د عضويت…

په وخت كې د حكومت په رسمي فرمان د كندهار د… ولايت په څينو علاقه دارو، حكومتو لو او كوچنيو…

كلو كې گرځېدم په نتيجه كې مې څو زاره لغاتونه متلونه، لنډۍ تقريبا بوولس قديمي ديوانونه انجمن

ته په وړيا توگه تسليم كړه چې په لاندې ډول دي:

۱- د محمد امان ديوان
۲- د محشور د كلي د باركزي حاجي جمعه ديوان
۳- د عبدالله پوپلزي ديوان
٤- د عبدالنبي بيقني ديوان
٥- د ملا شير محمد هوتك ديوان
٦- د ملا يار محمد دوه ټوكه ديوانونه او يو جلد پښتو ميراث نامه په نظم
۷- د ميرزا حنان ديوان
۸- د عبدالعزيز قندهاري ديوان (وړوكی ديوان)
۹- د كريمداد ديوان (د آخند درويزه ډوی)
۱۰- قلمي تجويد (ملا باز محمد شاعر)
۱۱- د پښتو انشاء دوه ټوكه زاړه كتابونه چې

د سراو پای باقي ئې نسته (دينی كتابونه دي)

د ښاغلي نوري څخه مې يوه پوښتنه د اوه چې آيا داوسني وظيفې څخه راضي ئې كه څنگه او د ليكوالي د ژوند څخه دې څه نتيجه اخيستې ده؟

(مخ۳۳)

پیاوړی فولکلوریست په جواب کی وویل:
ه‌دی خاطرې چی دلنګ‌می پر ګاره ولاړه ده ی نو خپله

او سنی وظیفه غنیمت بولم ودو سته تر هغه ئی سوړ ا سویلی وکیښ او وئی ویل:

د لیکوالی دژوند نتیجه می داده چی تراوسه پوری دځان لپاره یوه سرپناه نه لرم او کډه په شاګرځم د لته باید دا یادونه وکړم تر پروسږ کال پوری می چی د لیکوالی د ژوند څخــــــــه مــــــی پرته له دغی افتخاری سوانح او دخدمت دشهرت څخه بله نتیجه نه وه اخستی. دخپلو دیرشو کلونو خدمت دتقاعد د حقوقو څخه لا هم محروم وم. خو پروسږ کال دصدارت د مقام په توجه دتقاعدی حقوق را ته منظور سوه دا سی کلـــو نه هـــم دا یــا ند ی را غلی دی چی دیوه کال په مده کی، قسم دی که زما په کور کی دقصابی غوښی پاندی شوی وی.

ښاغلی محمد ګل نوری دیوی بلی پوښتنی په جواب کی وویل:

پرچاپ سوو آثارو پاندی چا تراوسه پوری یوه پیسه نه ده راکړی مګر دنا چاپ سوو آثارو له جملی څخه دزوړ کندهار په نامه کتاب پاندی چی د دی زره افغانی

جائزه پر ا یښول شوی او دا صلاح په ورځپا نه کی هم دا موضوع نشر سوه، تردوو کلونو تیریدو هغه‌ۊ چی وروسته زر افغانی دعبدالغنی خان نایب الحکومه په ذریعه

را ورسیدی. پاته دوه زره افغانی پر خپله تړه ولاړی

دپیاوړی فولکلوریست لیکوال څخه می چی دده په قول څلور ژوندی تراژیدی دی دمرګ په ورو ستی سوال کی دده دژوند خوږه او ترخه خاطره وپوښتل.

نوموړی هم پر ته له چرت وهلو څخه راته وویل:

دژوند خوږی او ترخی خاطری ډیری دا سره شته مګر نورو ته اهمیت نه ورکوم صرف یوه خاطره می

هغه ده چی زما لوموړی تالیف د لیکنی ښوونکی په نامه چی په ۱۳۱۸ش کال د پښتو ټولنی له خوا په دوه ټوکه کی دپوهنی دوزیر سردار محمد نعیم خان په امر چاپ سو. حقیقتاً ډیر په خوښی سوم ځکه معارف د پښتو

داملا او انشأ کتاب ښوونځی شو چی تر هغه وخته پوری ئی دا سی کتاب نه درلود.

ډیره ترخه نه هیریدونکې خاطره چی دمرګ تر ساعته به می لا هم په زړه کی وی هغه داده چی دادبی انجمن او پښتو ټولنی تأسیس له وخته څوک به دی

بریالی نه شو چی یو لوی پښتو قاموس جوړ کړی. په هغه وخت کی چی زه دتألیف او ترجمی مدیر وم او بیا د افغانستان دمجلی ژبو او لغاتو دڅانګی دآمر په حیث مقرر شوم نو

دمطبوعاتو دمستقل ریاست درسمی لیک په ذریعه وګمارل شوم چی ژر تر ژره باید پښتو قاموس جوړ کړم او دا خبره هم په لیک کی زیاته سوی وه که دد غه کار تر څنګ ی

وو ئلی نو سم امکانات به دعمومی مدیر رتبه او معاش وی لنډه دا چی په ډیر زحمت می دخپلی لور (طیبو) په مرسته دغه قاموس ترتیب او میدان ته می را و یوست چی نیم ټوک

دشین تر ردیفه دکندهار په دولتی مطبعه کی دا بازی صاحب په کوښښ او زما په خپله تصحیح او دشین دردیف څخه پیا تر پایه د کابل په دولتی مطبعه کی چاپ سو

په دغه وخت کی زه په کندهار کی دمطبعی مدیر وم ځکه می ونه لیدچی نوموړی قاموس په څه ترتیب چاپ سو خو کله چی ذکرشوی قاموس چی ما د

(نورالغات) نوم پر ایښی ؤ دقاموس په نامه نشر سو کله چی ما وکوت نو له بده مرغه زما نوم پر لومړی پاڼه نه ؤ لیکل شوی لیکن دنورو اشخاصو دنومو نو

په لړ کی زما نوم په هم) سره لیکل شوی ؤ په دی ډول زما دکلو کلونو زحمت او امکاناتو او هم دغه وعدی چی قاموس به دمحمد ګل نوری په نامه طبع کوو، عبث

ولاړی. دغه وه زما ډیره ترخه خاطره چی ورسره مخامخ سوی یم دغه رنګه په ژوند کی ځینی نوری

ترخی خاطری هم لرم چی دهغو څخه یوه زما دځوان زوی مړینه او بله داده چی د لیکوالی په نتیجه کی د پخی خرڅ او، حتی دچارسود څخو مزدوری ته اړ سوم

کله چی ما خپل کولی نو ډیره او سرمی دسپدلی وه یو مورخ په بازار کی تیریدم او دا می په خپلو غوږو واوریدل چی یو چا ویل چا ته وویل «لکه چی لیونی یا سودایی سوی دی» دا خبره ما ته ډیره ګرانه تمامه سوه نو می په زړه کی وویل چی زه پر څه حال یم او دوی څه وایی ددی قبیله نو ډیری ګیلی او خاطری لرم چی دنورو ګیلو ته کار لازم نه بولم.

د سیاسي اصطلاحاتو په لړ کې:

# ماکیاولزم

## MachiaVellism

د سیاسي مکتبو نو څخه یو مهم ماکیاولزم دی چې هغه ته د «نوی استبداد فلسفه» هم وائي

دا مکتب د هغه مجموعه اصولو، روشونو او اوامرو څخه عبارت دی چې د ۱۵ پیړۍ (۱٤٦۹-۱۵۲۷) ایټالوي فیلسوف او سیاستمدار

ماکیاولي، هغه پر خلکو باندې د حکومت او زمامدارۍ په غرض تجویز وي او د لومړي ځل د پاره

ئې په ختیځ کې د استبدادي حکومت افکار دکا غذ پر مخ خپاره کړل چې تر هغه وخت پورې

په دا سې صراحت نه وه لیکل سوي او ځکه ئې د هغه نوم نوی استبداد کښېښودی.

### د ماکیاولي د اصولو او عقایدو لنډیز:

۱- د ماکیاولي د فلسفې غایه د ده هدف، د متحد، قوي او مقتدر کښوایا لټۍ دولت تأسیسول دي چې د کلیسا تابع نه وي او سیاسي تفوق و لري.

۲- د ماکیاولزم کلي مرام یو بې ډول (بې میشم) او د ظلم

و استبداد او د نا محدوده مطلقه حکومت ملګرتیا ئي مرام دی.

۳- د انسان طبیعت د دغه مکتب له نظره: «انسان سیاسي

موجود دی، ذاتاً فاسد، شریر او خودخواه پیدا سوی دی، ځکه نو د انساني شرو د دفع او په ټولنه کې د نظم او آرامي شرط، هم یوه د مطلقه مقتدر حکومت جوړول دی.»

٤- زمامدار او د زمامدارۍ فن: هرنګه چې خلک طبعاً بد او خودخواه خلق سوي دي، نو باید د زمامدار اعمال او طبیعت لومړی پر خود پرستۍ (اګوئیسم) او ځان غوښتنې باندې بنا وي او هم باید بد بیني خپل کړه لار وګرځوي او اعمال او افعال ئې هم باید سخت او ظالمانه وي او هیڅ حد و اندازه و نه لري. له دې امله چې د انسان طبیعت متجاوز او منفعت جوړه دی او د هغه طمع نه حد و اندازه نسته او ټول قواوې چې خپله هستي، مقام او قدرت لوړ کړي او هرنګه چې قدرت او ملکیت د طبیعي ثبتې په واسطه محدود د سوي دي، ځکه نو د خلکو تر منځ د رقابت کشمکش، ټولنه په هرج مرج (انارشیزم) تهدیدوي او د دغه کار مخنیوی د مافوق قدرت وظیفه ده. زمامدار نه یوازې د دولت معمار دی بلکه هغه د اخلاق مذهب او اقتصاد معمار هم دی زمامدار باید له بدۍ او شرارت څخه و نه ویرېږي، ځکه بیله بدۍ او شرارت څخه د دولت ساتنه محال ده. ځینې تقوا او ئې د خرابۍ سبب ګرځي او ځینې شرارتونه د بقا او سلامتۍ سبب ګرځي. په دې اساس هغه دولت چې په زور باندې متکي وي، موفق دی او بس پر ته له موفق سیاست او قدرت د زیاتوالي څخه د زمامدار د عمل او قضاوت د پاره بل ترازو نسته.»

د ۱۳ مخ پاته

# خوب . . .

ډاکټر ویلیام ګیټي په خپل کتــــاب چه کسې چې په ده ورو ستیو وختو کې خپور سوی دی لیکي:

عصبي تشنج په یوه شخص کې د ورځې د لومړي یو ساعتو څخه چې د خوب له را کېښتني شروع کېږي او د شپې تر پایه پر له پسې زیاتوب مومي، دا تشنج د هغې په وروستیو ورځو کې هم اضافه کېږي او بیا ئې په یوه فاجعه بدلېږي. په دا سې حال کې د غرمې خوب که څه هم وخت ئې لږ وي، د هغو خلکو د پاره چې د زیاتو کار او فعالیت سره مخامخ وي، دا مکان لري کوم چې د غه نا وړه عصبي حملې دفع کړي.

ډاکټر ټیلر وايي: د خوب اندازه د کار او فعالیت سره مستقیمه رابطه لري. یعنې هر څومره چې څوک ډېر کار کوي، خوب ته هم ډېره اړتیا لري. خو د بده مرغه خبره سر چپه ده، هغه کسان چې ډېر کار لري، د استراحت وخت ئې هم ډېر لږ وي او بیکاره خلک عموماً ډېر خوب کوي.

ډاکټر ټیلر دا سې توصیه کوي:

کوښښ و کړئ چې ټل پر ټاکلي وخت ویده سئ او د شپې د خوب له سنګینو خواړو څخه ډډه وکړئ، خوب ته د ځېنې او هیجان پارونکي کتابونه د شپې له خوا مه مطالعه کوئ.

(پای)

عبدالله فیاض:

# باباصاحب څوك دی؟

په کندهار کښې ډېر اولیاو
او علماوو زیارتونه شته
وی نه یوازې کندهار ته، بلکه
اسلامي قولنې ته خدمت
دی.

د اولیاو او علماو د
ع حقیقي خدمتګاران
تا ر یخي اشخاص بال
ی.

تودوی یادونه د کندهار د
و لپاره یو ضروري کار دی
دی کېله موږ یو ډی ګڼه کی.

ندهار کی د لویو اولیاوو څخه
حسن ابدال (باباصاحب علیه
) دی چې د کندهار د ښار
په یخ کې تقریباً (۱۰) کیلو
لېری ده، زیارت دار غنداب
سوالي د مرکز دیوی سمسو دی
په لمن کی پر یوه لوړه
ی واقع دی او یو مسجد هم

باباصاحب (رح) ته د کندهار
او ښځې نیکه اړ ا ... وده
بت او لوړ مقام ته ښه عقیده
وده. مبارك زیارت ته په
خت کی خصوصاً د پنجشنبې او
ورځې په زرو خلکه
ی.

دی ځای حیني خلکو په خوب
یه کی د باباصاحب (رح) فیض
کت لیدلی دی

اليت مقام ئی خلکو پېژندلی

د تحفة الکرام تاریخ لیکی
باباصاحب لوم (سید حسن ابدال)

دی او د صحیح النسب سادا تو څخه
دی.

ډیر کلونه ئی په مکه شریفه
او مدینه منوره کی په عبادت
زهد او تقوی، تیر کړی او زیات
ریاضت ئی کښلی دی، او د لوی
خدای (ج) په لاره کښې ئی ډیر
زحمتونه وړی دی.



په کندهار کښې د باباولی صاحب زیارت
کاه.

ده مبارك په تل خپل وخت د
خدای (ج) په یاد، ذکر او دوعا
او د خپل نفس په وژلو تیراوه او

دهوا او هوس او باطلو آرزو ګانو
څخه، تیر شوی وچې د ډېری تقوی او
ذکر و عبادت او نیکو اخلاقو، سخا
او شجاعت په برکت ئی د ابدال لقب
وړی دی

تحفة الکرام لیکی چې
باباصاحب د شاه رخ میرزا په عصر
کی چه د امیر تیمو رزوی و وارد

کله چه شاه رخ میرزا د هند د
نیو لو په نیت د هرات څخه حرکت

(۲۵مخ)

⊛ ورکړل او باباصاحب (رح) چې په دغه وخت کې په شینواري کې ژوند کاوه دغېل ځان سره وهسند تسه بوتی.

ځو ددې په برکت دفتح اد بري سره بېرته راستون شو.

لو باباصاحب (رح) د کندهار په ارغنداب کې پاته شو او په یو ښه او سمسور ځای کې ئې خانقاه او د مریدانو حلقه جوړه کړه.

لنگر ته خاص وعام و د تله او دودېدې ئې ود کول خوراران او غریبان بېرته اقول و د چې هغه ځای اوس هم د «لنگر» د کلي په نامه یادېږي.

باباصاحب د خپل خدای (ج) دیاد او مناجات لپاره دیوه لوړه غره پر څوکه ځان ته یو خلوتخانه جوړه کړه چې هغه ځای اوس هم ستره او هلته د شاه حسین ئي (صاحب) زیارت دی

باباصاحب (رح ترمرگه پورې د لته ژوند کاوه.

تاریخ لیکي چې دی د حضرت شاه نقشبند صاحب رحمة الله علیه معاصر ؤ د حضرت سلطان ابراهیم ادهم رحمة الله علیه څخه ئي د خلافت او مریدي رشته او سلسله د رلوده.

باباصاحب د عمر پر ۹۳ کاله د دنیا څخه سترگې پټې کړې دي

وفات تاریخ ئې تحفة الکرام (۸۲۰ ا) ثبت کړېدی.

په تصوف کې ځینې خلک دی نقشبندي او ځینې ئې قادري او ځینې ئې د طریقه چیستي په مسلک کې داخل بولي.

په هر صورت دی ډېر لوی مبارک ولي دی د، هري طریقي پیر او مرید چه مراقبه و رته وکړي گمان کوي چې ژ موږ د طریقي دی څو فرق نه لري قول لیاري او طریقي د خدای (ج) د قرب او رحمت سبب دي ددغه قول خلک او دغو لوطریقو مریدان فیض او برکت وړی او وړي ئي دي.

# په زړه پوري خبرونه

## د وه نیم متره مار

یو مسهی یو مار چې اوږدوالی ئې د وه نیم متره ؤ د خپلې خونې به چت کې ـ ــی ووژه.

د ز ا بل د ش ینکی د و لسو الی او سید و نکی امان الله د کرونده څخه کور ته دراستېدو سره سم دا متر احت په وخت کې متوجه سو چې دخونې د په تیرانو کې یو لوی مارگرځي نو سمدستي ئې توپک راواخیست او ذکر سوی ماریې د ډزې په واسطه ووژه. ووېل سوی مار چې اندازه سو اوږدوالی ئې دوه نیم متره ته رسیدی.

(ب)

## یوې بزې شلو مرغومي زیږولي دي

د ذابل په ولایت کې یوې بزې په یوه وخت کې شلو د مرغومي زیږولي دي. د بزې د بچیانو حالت بې بنه دی د بزې خبتن وائي چې د غه بز ه هر وږ اوه کیلو شیدې ور کوي.

ذکر سوی بزه د ژابل د اوري د مکی په اوسید و نکی حاجي خیر محمد پورې اړه لري.

(ب)

## یوه پشي دیوه ځای څخه تر اوو ورځو لوېزې و رو سته روغه رمټه را وکښل سوه

یوه پشي تر ۷ ورځو لوږې اود ځاو ر چیچیانو ترڅ پروا ورو سته، دیوه ځای څخه ژوندې راو کښل سوه.

یوه هفته د مخه ده خواجې داو سیدونکی تاج محمد په کور کې یوه پشي ورکه سوه. د کور خبتن چې هرڅه تلاش وکړ کومې نتیجې ته ونه رسیدی.

خو تر یوې هفتې ورو سته د کور خبتن د ځاه دژ ورولو په غرض یو ځاه کیندونکی کور ته بوتلی کله چې ځاه

یه کېنته سو د ځاه په تل کې د پشي او ځلورو چیچیانو سره مخامخ سو، نو سمدستي ئې هغه راو کښل او د ځاه په کیندلو ئې پیل وکړ.

د کور خبتن د پشي د را وتلو او په ځاه کې داو بو د پیدا کیدو په سبب ډېر خوشحاله سو او ځاه کیندونکی ته ئې علاوه پر خپله مزدوري څه پیسې د بخشش په توگه ورکړې.



د کندهار په شمال لویدیځ برخه کی دفیل کوه داو بو دبریښنا د دستګاه یوه منظر



په بامیان کې د بودا لویه تاریخي مجسمه

د کندهار د دولتي مطبعه